ډاکټر کبیر ستوری

Dr. Kabir Stori

# سندریز پیغام

# SANDAREEZ PEGHAM



شعري ټولګه

خپرونکی: د پښتونخوا د پوهنې دېره ـ پېښور

Da Pakhtoonkhwa Da Pohane Dera

# د کـــتاب ځنګړنې

---

## د کتاب نوم: سندریز پیغام

شاعر: ډاکتر کبیر ستوری
خپرندوی: د پښتونخوا د پوهنی د ېره، پېښور
چاپ نېټه: ۲۰۰۲ ع
چاپ شمیر: ۱۰۰۰ ټوکه
کمپوز: ذ. شفق، خلیل الله چمن
چاپ ځای: دانش کتابتون، پیښور-پښتونخوا

د انټرنیټ په مخ

کمپوز : نسیم خان ستوری

ترتیب : ایمل خان ستوری

# ډالــۍ

د پښتو ژبې نامتو شاعر او لیکوال د پښتو ټولنې د پوهنې د

دېرې مشر خورېږ ملګرې لايق زاده لايق ته چې د پښتو په ادب او هنر

کې د نوي پرمختللي خوزښت مخکښ دی.



ډاکتر کبیر ستوري
**Dr. Kabir Stori**
Kiebitzweg 12
50389 Wesseling
Germany (Deutschland)
www.kabirstori.com
**E-Mail:** stori@kabirstori.com

# سرلیکــــونه

| | | |
|---|---|---|
| سریزه | پښتو | لـېونی |
| شاعـر | د مینـې ستـوري | ډالـــۍ |
| د ژوند لـلمه | ځـوانـۍ | پـیغام |
| د و فـــا دود | ازار | عـبـادت |
| د جنت حوري | نـشـت | د ښـایـست زور |
| زاندانـي ذهـن | پـه ځـان مـیـن | پـه ګـلو کـې سـندره |
| د مینـې ګـلشـن | پـېـزوان | د ځـوانـۍ زور |
| د نـاز کـاتـه | شـپـه | ارمـان |
| د مینې افسانـه | د عـشـق بـرخـه | سـوکالـي |
| پسرلـی | پـــت | روغ صـورت |
| مـانـا | تـاریـخ | بـهانـه |
| لـوزونـه | | د هـنـر مـیـنـه |
| د عـشـق افـسانـه | د ژونـد خـــوارېه | تـنـده او مـنـدېه |
| د عشـق فـلسفـی | د مـحبـت تـورن | مـهلـت |

| | | |
|---|---|---|
| ذهـنـي غـلام | پـرديس بـچـي | ګـونـګـه مـيـنـه |
| ښـکلـي جـانـان | پـوهـيـال | د عـقـبا حـوري |
| بـد بـخـتـي | اخـتـر | پښتو ده مينه |
| بې تـوري تـورزن | د ځـنګل قانون | سـلا |
| تـوان د اتـفـاق | لـباسي يـارانـه | ښـايسته سوچ |
| د رنـدو ښـار | د اولـس مـېړنـي | جـانـان |
| د عـشق کاروان | اخـتـر (۲) | د ژونـد مـسـتي |
| سرچپه د ستور | تـخـيـل او حـقـيقت | وړوکی پـتـوال |
| ګـونـګـه ژبـه | ځـان پـرسـتـي | نـوی ژونـد |
| بـرګـودر | د مـحـبت سندر | سـربـازي |
| د عـقل پـيماني | د چـيـنـي اوبـه | د حـرکـت فلسـفـه |

| | | |
|---|---|---|
| د عشق کـتـاب | نـوی کـال | د بـابـا ژبـه |
| تـو پـانـجال | د ويـنـو رنـګ | پـلـو |
| ديـدن | د نـظـر آزادۍ | داسـتـان |
| مسـتـه خنـدا | د ځـوانـي رنـګ | د دنګو غرونو وطـن |
| د مـيـني هـنـر | خـمـار | قـسـمت |
| سـيـل (۱) | سـيـل (۲) | د جـنکو دوعـا |
| د وفـا لـور | د جـانـان سترګـي | د درخـو خـور |
| د وطـن نـاوی | تـلـوار | د ښـکـلا دری |

| | | |
|---|---|---|
| د سرو شونډو خندا | شمله | د ځان قاتل |
| د محبت قانون | د کونړ دسینداوبه | پو ښتنه او ځواب |
| مرور یار | د ښایستونو منجارو | شاړبن |
| دروغجن | سینګار | د مینې زور |
| ریحان | د عشق نغمه | وفا |
| زړښت | سندریز ماښام | سلما |
| د مینې قانون | غلچکې | د غیرت امتحان |
| د عشق مضمون | سندره | ولولې |
| خاطر | | |



## د پښتو د اسمان ستوری

درنده ؤ کې زمری، مرغو کې باز دی
پښتانه د انسانانو باچایان دی

د نړۍ دا غوره اولس پښتون څه خپل فطرت وخوړو او څه خپل نیت د پښتنو ستر ملی قهرمان فخر افغان بابا فرمائی چې:
« پښتانه ډیر بې اتفاقه قام دی خو په یوه خبره ئې کلک اتفاق کړی دې چې مونږ به چیرې هم نه متفق کیږو».
دا ژړا د خوشحال خان بابا نه واخله تر ننه کېږي. خو د هاتی په غوږ کې اوده پښتانه هم لا هم هغسې خوبولی دی د خپل ځان، د خپلې ژبې او خپلې خاورې نه بې خبره پښتون په هندوستان څلور سوه کاله خوا ؤ شا حکومت کوي او خپله ژبه نه هسکوی ، دا خو د پښتنو خپله کوتلتیا ده چې د ولس او سرکار له کومکه بغېر ځان ژوندي او ګړندي ساتې.
ما اورېدلې چې کوم قام په ښکته روان وی نو ادب ئې بره روان وي په دې خبره کې څومره صداقت دی نه پوهېږم. خو د شاعر ادیب دا کمال دی چې، دی چیرې هم د خپل قام نه مایوسه کیږی نه، ناامیدی دده په کتاب کې نه وي، دی په هر تورتم کې د امید مشالونه بلوي او اولس ویښ ساتي.
د پښتو ادب اسمان د ستورو نه برجت دی. په دغه ستورو کې **ډاکتر کبیر ستوری** یو ځلند او بلند ستوری دی چې د المان د لرې هیواده د خپلو خلقو او خپلې خاورې سر د پښتو په مزی ځان ټینګ تړلې ساتي. داسې ښکاري چې دی اوده کېږی په جرمني کې او په خوبونو کې وینی خپله خاوره او خپل خلق هسی هم په پردیس کې عام سړی د خپل وطن د یادونو او بادونو نه یو ساعت نه وی وزګار او بیا چې سړی شاعر وي نو د شاعر د تصور دنیا خو دومره ویره او ارته بیرته وي چې برېدونه ئې نه معلومېږي. شاعر هسې هم په وطن سرورکوي او چې لاترینه لرې هم اوځې نو داسې شې لکه مهی د اوبونه لیرې، د **ستوری صیب** د شاعرۍ رغاونه د پښتو او پښتونوالی په توکو شوی ده خپل تهذیب او تمدن، تاریخ او ثقافت ئې په لا شعور کې داسې سنبال دی. چې دی کور ، کلی، حجره او جرګه هم د پښتنو غواړی رواج کلیوالي او دود دستور هم د پښتو غواړی محبوبه هم پښتنه غواړې.
دی خپل قام په امن، مینه، وروروليۍ او سوکالیۍ کې لېدل غواړي شته من، ماړه او پټ ئې لېدل غواړي. خپل پیغام په ساده، روانو او سوچه ټکو کې رسول د ده د هنر خاصه ده د مبهم او مهمل خیالونو او لفظونو نه تر ډیره حده ډډه کوي.
**ډاکتر کبیر ستوری** د خپلې ژبې داسې پتنګ دی چې ددې د سرلوړۍ او پر مختیا د پاره د هیڅ قربانیۍ نه مخ نه اړوي. ځان هم شته کول غواړي او قام هم. د لطیف او پراثره شخصیت او هنر دا ساهو تخلیق کار ستوری په اسمانونو کې د اوسېدو په ځای په خپلو لارو ، ولو او غرونو راغو باندې د تصور په وزرو الوت

کوي او چې د اولس کومه کړمه، کومه کشاله وینې. رنځیږي، زهېریږي، ژړیږي او بیا هم دغه جذبې د قلم څوکې ته ورسپاري، لکه د یو زېرک نقاد طنز هم کوي او پیغور هم د خپل قام ستاینه هم کوي او غندنه هم.

## ګناه د بل چا نه ده ، دازمونږ خپله ګناه ده
## پښتو پښتونولۍ ته اړولې چې مو شاده

## پښتون چې څوک کړي مشر او خاوند چې د کرسۍ شي
## هغه بس ماته کړي دا د خپلې پښتو ملا ده

په عالمي پښتو کانفرنس کې ما د المان دا ستوری د اسمان په ځای په زمکه ولید، د څو څو ملاقاتونو نه پس زه په دوه کې حیران پاتې شوم چې دی ښه انسان زیات دی او که ښه شاعر.
د ستوری صیب د فکرآلوت که په هر لوروي خو اسمان به د پښتو وي.
ددې ښاغلي هره موضوع د پښتونولۍ په رنګ کې رنګ ده ځکه مونږ دا په ډاډه ویلی شو چې سوچه پښتون شاعر دی.
د ملل متحده د یونیسکو د منشور په رڼا کې دا په ډانګ پئیلی ویلی شوېدي چې بچی ته دې تعلیم د هغه په مورنۍ ژبه کې ورکړي شي ځکه چې زمونږ د ماشومانو زیاتره وخت د نورو ژبو په زده کړه تېرېږي نو علم څه وخت زده کړي. د علم زیلو ته رسېدل په ژبه عبور غواړي.
په نړۍ کې چې کومو هیوادونو ترقي کړیده نو د خپلې ژبې د علم په وجه یې کړیده.
جاپان، چین، جرمني، روس او ټول یورپی ملکونه بچی ته هم د هغه په ژبه کې تعلیم ورکوي. خو زمونږ د وطن واکمن ددې حقیقت نه غاړه غړوي.
خپله ژبه خپله وي، کومه ژبه چې د مور په غېږه کې زده شي هغه په شعور لا شعور دواړو کې خوندي شي. سړی که هر څو نورې ژبې زده کړی خو دا یو نفسیاتي عمل دې چې سوچ په خپله ژبه کې کوي. چې کله غصه شي نو خپله ژبه وائې چې کله خوشحاله شي نو په خپله ژبه ګښېدل غواړي، او که دغه نه وي نو خوب خامخا په خپله مورنۍ ژبه کې وینې.

مونږ بدبخته او ساده ګان پښتانه خپل یار دوست خپل رور عزیز ته چې خط لیکو نو په پردۍ ژبه ئې لیکو. آن تر دې چې د ځان سره په جیب کې د سود سودا او چاي ګوړې حساب کتاب لیکو نو هم رانه خپله ژبه هېره وي، آیا که زمونږ د خپلې ژبې سره د سلوک دا حال وي نو دا به مخ په وړاندې لاړه شي؟ یا به مونږ پر مختګ وکړی شو؟ باچا خان بابا وائی، « کوم قام ته چې خپله ژبه سپکه شي نو هغه قام سپک شي او چې ترینه ژبه ورکه شي نو هغه قام ورک شي» که هر څو دا متل دی « د پښتو کانې په اوبو کې نه ورستېږی» پښتو ډیره بشپړه ، کوټلې او سپېڅلې ژبه ده پښتانه ډیر پیاوړي او ننګیالي دی خو د ننګ سره چې فرهنګ نه وي چې کلتور او ادب په لور غورځنګ نه وی نو بیا به څه شي.

د قام د ننګ او پت وارثان شاعران ادیبان د خپلې ژبې امانتګر او د خپل ځلنده تاریخ، تهذیب او ثقافت مفسر دی د دوی قلم نه څوک پڅولی شي او نه ئې ودرولي شي. د تاریخ هیڅ یوه پاڼه زمونږ په باب تشه نه شي پاتې کېدی تر څو چې اسمان وي تر هغې به ستوري ځلېږي په خپل یو شعر دا خبرې پای ته رسوم.

حالات که رالـه نه پرېږدی په زړونو کې پښتـو
زمـونـږه خو بـهـېـږی پـه رګـونـو کـې پـښـتـو

مـنـنـه

ابـاسـیـن یـوسـفـزی
پـېـښـور پـوهـنـتـون
۳۰ اګـسـت۲۰۰۲

پـښـتـو

ګـنـا د بـل چـا نـه ده دا زمـونـږ خـپـله ګـنـا ده
پـښـتـو ، پـښـتـونـولی تـه اړولـی چـې مـو شـا ده

پښتو تش ژبه نه ده دا د ژوند ښکلي قانون دي
پښتو او د پښتون تورو کې ښه لويه مانا ده

چې ننګ وکړي جانانه څوک پښتو باندې پښتون شي
پښتو پخپله پت، ښيګړه توره او وفا ده

پښتو چې د پتمن پښتون اولس د زړګي سرده
د خپل وزير باچا له لاسه سروهي تالا ده

پښتون چې څوک کړي مشر او خاوند شي د کرسۍ
هغه بس ماته کړي دا د خپلې پښتو ملا ده

باچيان خو پښتانه تاريخ کې ډير زيات دي تير شوي
خو خپله پښتو ژبه پريښودلې هر باچا ده

باچا چې د کوم قام، د قام په ژبه نه پوهيږي
دنيا کې به څنګ سيال شي تمه څه د پر مختيا ده

پښتون نه ، غير بل قام ستوری دنيا کې چا ليدلی
چې قام په اقتدار وي او د ژبې وتې ساده

## ليونی

د خپل ځان پېژند تری ورک دی حق حيران دي
خپل نوم نه پېژني خبری ئې ګريوان دي

کله یو نوم کله بل نوم د ځان بولی
لېونی دی ، ځان ته وائي چې لقمان دي

پردي خپل ګڼي او خپل ورته پردي دي
د خپل ځان قاتل ته وائي چې جانان دي

ستوری غټو طبیبانو ته مې بوتلو
خو ټول وائي چې ددې رنځ درمل ګران دي

## د مینی ستوری

د ځان مین ته دی شعور د قام د ننګ ورکړه
چې اوده نه شي د مړوند بنګړو ته شرنګ ورکړه

بې پښتو نه شي په پښتو باندې پښتو به کوی
د مینی ستوری ته د خپلې پښتو رنګ ورکړه

## شاعر

رقیبه ستا پری څه؟ چې زه بنایست د چا ستا یم
زه یو شاعر یم، ښکلاګانې د دنیا ستا یم

زه تخیل کې د ژوندون نوی ورشو کې ګرزم
د غرو لمنو کې دیرو د پښتنو کې ګرزم
سرود د مینی غړېوم د عشق نغمو کې ګرزم
پښتون ځلمی یم، ګل دری د پښتونخوا ستا یم

زه يو شاعر يم، ښکلاګانې د دنيا ستا يم

زه د همت وزر لرمه الوتلې شمه
زه تخيل د حقيقت په تار ترلې شمه
لکه منصور د دار په سر باندې ختلی شمه
د دار په سر هم توری سترګي د اشنا ستا يم
زه يو شاعر يم، ښکلاګانې د دنيا ستا يم

له تا لوګی شم د زړه سره خفه کيږې به نه
ياد کې مې او سه قسم وکړه چې هېرېږې به نه
ځما د فکر د ورشو ځنی بېلېږې به نه
په دې جذبو به دی په مينه خامخا ستا يم
زه يو شاعر يم، ښکلاګانې د دنيا ستا يم

زه خپل سوچونه د احساس اور کې سېزلی شمه
په سوز د مينی خپل جانان ته رسېدلی شمه
د جانان غېږ کې اوږدې شپې شوګيرولی شمه
د فن په ژبه باندې ستوری د سبا ستا يم
زه يو شاعر يم، ښکلاګانې د دنيا ستا يم

## ډالۍ

جوړه به تپه د خپل مين زړګي د رازه کړم
تا له به جانانه تری ښه ښکلې ډالۍ سازه کړم

وايه راته وايه، چې په کوم رنګ ئې رنګينه کړم
ما سره جرګه شه چې زه دا خبره سپينه کړم
مينه کړمه پټه، که په ډاګه خپله مينه کړم
ما خو تکل کړی چې د مينی لاره وازه کړم

تـالـه بـه جـانـانـه تـرى ښه ښکلې ډالۍ سازه کړم

زړه مې دې پښتون پـر ښـردو چې مینه پښتنه کړمه
پـت او پـه وفـا بـانـدې د عـشـق دنـیا درنـه کړمـه
هـر څـه کـه پـیـښیږي زه بـه دغـه فـیـصله کړمه
مـال او سـر بـه دواړه سپیلـنـی دا ستا د نـازه کـړم
تـالـه بـه جـانـانـه تـرى ښه ښکلې ډالۍ سازه کړم

بـې مـیـنـې انسان ، د قـدرت راز تـه رسېدی نشي
پـتـه د هـدف د ژونـدون څـانـتـه لـګـوی نـشـي
مینه چې ښکاره نه وی، مـیـن مشـهور یـدی نشي
ستوری څه چې لاړ شـو ، دا پـوښتـنـه د ایازه کـړم
تـالـه بـه جـانـانـه تـرى ښه ښکلې ډالۍ سازه کړم

## د ژوند للمه

ښـکـلا پرسته ده، ښایسـته ښـکلې جهان غـواړي
د مـحـبـت جـذبـه پـه زړه کـې د انـسـان غـواړي

پـدې پـوهېږي چې بې مینې ژوند ګلان نه نیسي
لـلـمـه د ژونـد د مینې ښـه پـه شرک بـاران غـواړي

د پـطـرو شـړنګ باندې اوده زلمی له خوب ویښوي
نـوی د مـیـنـې پـسـرلـي ، نـوی دوران غـواړي

د ژوند ، د مینې او ښکلا تر مېنځ تړون پېژني
مقابله کې د ښکلا ځانته جانان غواړي

د ستورې زړه د عشق قانون کې په دې ګرم مه ګڼې
چې سره ګلونه په موسم کې د خزان غواړي

## ځواني

جانان مې بېره تورې دوبار ځواني غواړي
لږ ئې خبر کړي چې ځواني زور جسماني غواړي

په تور او ربل لوبې کول ورته اسانه ندي
د عشق ډګر کې تش په خوله قهرماني غواړي

تللې ځواني بېرته د بېرې په رنګ کله راځي
د مینې ژوند خو توانونه رښتیاني غواړي

د مینې ژوند کې په رښتیا باندې چلند دې پکار
معشوقه ګل دي ، عشق د ګلو باغواني غواړي

پربېږده چې وریځې وی اسمان کې ، ستوری پټ وي پکې

دا جل وهلي بڼ موسم ښه باراني غواړي

## پیغام

راته پاتی له لویانو دا پیغام دی
چې د بل په درناوی کې د روند مقام دی

که نظر دی خپل اوچت ساتی نو پوه شه
چې لازم د بل نظر ته احترام دی

د نیم ډک او د نیم تش جام بیلګه ګوره
چې منفی او هم مثبت رنګ د کلام دی

خپرخواهان وایي جام ډک نیم د اوبو دی
بدخواهان وایي نیم تش د اوبو جام دی

چې د بل په سپکاوی کې درنښت غواړی
د روند به نه شي تل پدې کارکې ناکام دی

چې د بل د غلامۍ سوچ لری سرکې
ازاد نه دی، د ده هم ذهن غلام دی

ستوري وايې دا منلې تول جهان دی
خپلواکې بنیادی حق د هر يو قام دی

## د وفا دود

خیال تصور دی که رښتیا ده
خواله راځی، خواله درځمه
د عقل زړه سره سلا ده
چیرته چې ځې درسره ځمه
مینه ښکلا ده، ښکلا مینه
دنیا ئې کله بېلوینه

ښکلا د مینی نه پیدا ده
پریږده چې ښکلې ښکلوومه
خیال تصور دی که رښتیا ده
خواله راځی، خواله درځمه
پښتو چې ښکلو سره مل شی
د ښایست زورئې یو په سل شي

په پښتو ښکلې هره خوا ده
ځکه تری سر خپل زاروومه

خیال تصور دی که رښتیا ده
خواله راځی، خواله درځمه
د ستوری مینه پښتنه ده
پت او ښیګړه ده درنه ده

ختهٔ ئې جوړه لـه وفـا ده
د وفـا دود نـه مـاتـوومـه
خـیـال تـصـور دی کـه ربښـتـیا ده
خـوالـه راځـی ، خـوالـه درځـمـه

## ازار

د بــــــل زړه ازارول چــــــاره خـــــطـــا ده
خـــــو ازار د مــــور او پــلار لـویــــه ګـنــا ده

چـې ازار د مــور او پـــلار وی ځـــوک وهـــلـی
د بخـت سـتوری ئـې تـورتـم وی دا ربښـتـیـا ده

## عـبادت

مـــحـــتـاج کـلـه د انـسان د زیـار زحــمـت دی
بــې نــیـازه دی د خــدای بــې شـان قــدرت دی

عـــبـــادت د مـــیـــنـــی نــــوم دی دا مــنـمـه
نیـکـمـرغـی د انـسـان مـیـنـه او مـحـبـت دی

عـــبــادت زاهــــده ســــتا ســــوال او زاری ده
پــه مـا هـسـې د خــدای ډیـر زیـات شـفـقـت دی

چـــې ئــې نـــه لــری هـغـه ئـې د خـدای غـــوارې
چې لــری ئـې د غـــوښــتـو ئــې څـه حـاجـت دی

د چا ستوری د بخت روڼ د چا تیاره دی
د عمل هومره د هر چا خپل قسمت دی

## د جنت حوری

څه پروا ځما د حورو د عقبا شته
د جنت له حورو ښکلې په دنیا شته

چې دا ښکلې خدای زما په نصیب کړي
راته وایه د حورو څه اړتیا شته

جنتونه تری همه واړه قربان شه
چې جنت ځما د مینی پښتونخوا شته

سترګې وغړوه نیمه شپه کې ګوره
چې د ستورو د اسمان څومره ښکلا شته

## نشت

لږ د نشت نه ډېر دی که ټول نه وی لږ به تل کوی
رسی به منزل ته چې ولاړ نه ئې مزل کوی

غېږ ته د جانان ورتله جرات عمل خوزښت غواړي
هسې په خوله نه شي چې په خوله ورته ورتلل کوی

مینه د جانان کې هم خوندونه هم دردونه شته
خوند که اخستل غواړي د درد به هم زغمل کوی

د مینی پشکال کې چې ونه سوځی په اور کې
ستوری باندې سیوری به د څنو د اوربل کوی

غلی اشاری کوی اشنا راته څه وایي
په زړه ئې څه خبره ده تنها راته څه وایي

نازونه ئې په سر سترګو ما هر وخت دی منلی
د زړه په غوږ ئې اورم چې د چا راته څه وایي

غوټۍ د ارمانونو څما وسپړی ګلونه
پیرزو چې په ما وکړی په مسکا راته څه وایي

څومره چې ئې اورم هرمره لا پسې مزه که
چې کله د پښتو او پښتونخوا راته څه وایي

زه ستوری ئې د مینی په خبرو نه مړیږم
د خپل ښایست د زورکه د وفا راته څه وایي

## زاندانی ذهن

عجیبه غوندی د ستور د زمانی شو
چې زاهد لاړو ساقي د میخانې شو

ساقي کيناسته د شيخ په ځای محراب کې
رنګ بدل هم د بلبل د ترانې شو

ذهن شو د زرغلام تلل په زرکړې
سرېتوب د زر په کچ او پيمانې شو

د بدرنګ او د ښايسته توپير هم زر کړی
ښايسته دی چې خاوند د خزانې شو

چې ئې ذهن ستوری لاړو زندانی شو
حاجت ورک نور د پښو د زلوانې شو

## په ځان مين

په ځان دوهره مين شو چې جهان ئې نه لېده
جهان لا څه کوی چې خپله ځان ئې نه لېده

قاتله ئې د ځان او د جانان وه د ځان مينه
لمبه لمبه ارمان سره ارمان ئې نه لېده

د ځــان د مــيــنــی اور کــې ئــې نـظر وســو ځــېده
سور تـیـک ، د زنی خال ، مخ د جانـان ئـې نـه لـېده

جـذبی د ځان د مینی ئې بـینا سـترګې ړندی کړی
د ګـلو مېــنـځ کې ناست و خـو ګـلان ئـې نـه لــېده

ژونــدي پــه مــړ حساب دي د رڼــا نـه شو بی برخی
ځــلانــده، رڼـا ســتوری د اسـمـان ئـې نـه لــېده

## په ګلو کې سندره

زړه مــې راتــه وایــې د بـلــبل ســره جـرګـه وکـا
ګـل وکـره ژونـد کـې چـې میـن ئـې نـنـداره وکـا

بیا پــه چکر راشــه چـې بــورا دی هـر کـلـی وکـړی
ورک به دی غـمونـه شـي چې ګـل خـوړه وږمـه وکا

پـریـږده چــې د ګـل بـوټـی نـه جــوړه غـټـه ونـه شي
ســتـړی ددی لاری بـه ئــې ســيـوری تــه دمـه وکـا

نیمه شپه په کلو کې سندري خوندوري وی
ته په کې د سوچ د ازادۍ یوه ټپه وکا

مست د کونړ سیند به دی لاهو کړی په خیالونو کې
مه ځه پوری کلی ته د ستوری سره شپه وکا

## د مینی ګلشن

غم به په غم باندې امبار کړمه
ځان به د غمه نه وزګار کړمه

نور به د ښکلو په محفل کې ګرځم
ګلشن د مینی به تیار کړمه

ښکلې مې خوښ دي چې پښتو ولری
غواړم چې ځان ئې خد متګار کړمه

تش ژبه نده دود د ستور دی ځما
تل په پښتو مې کاروبار کړمه

چې پښتو ورکه شي پښتون ورکېږي
ځکه د مينې ئې اظهار کړمه

سر به ځما ستورو ته ورسېږي
چې سر د خپلې پښتو زار کړمه

## پېزوان

په منډه لاړه په کوڅه کې ئې جانان پاتې دی
بيرته به راشي په ګودر کې ئې پيزوان پاتې دی

ملګرو کرد مينی وکړی چې زرغون شي وطن
په محبت او مينه تل جهان ودان پاتې دی

زر نه زړېږی د چا زړه چې وی له مينی نه ډک
دا خو د مينی د ځوانۍ سره پيمان پاتې دی

په بوډاګانو کې چې ستوری چيری ونه شميرۍ
خير دی که ږيره ئې شوه سپينه سوچ ئې ځوان پاتې دی

## د ځوانۍ زور

ماتـــه چـې ګـودر پـــه غـــاړه غـلـی په خـنـدا شـوله
مـخ کې ئـې د مـینـی محبت سرخی پــیـدا شـولـــه

زه ئې د سور ټیک او د شـین خـال پـه نـنـداره ومـــه
خـــلـکـو راکـتـلـی پـټـه مـینه مـې رسـوا شولـه

نـــاز او اداګـانـــی د ښــکـلا سره ملـګـــری وی
هـــر یـوه ادا ئــې د ښـکـلا ســره ښــکـلا شـــولـه

زور ئې د ځـوانـی د مـیـــنـی جـوش راپـــارولـــې و
ځوانه ئې مستي وه په مستۍ کې په نـخـا شـولـه

ستوری چې راوختل د شپې تیاری خوری شـولـی
خواتـه شوه راوړاندې په ذکات د خولی رضـا شـولـه

## شپه

ګیلې دې پرېږده راته وخانده چې وخاندمه
تل په خفګان کې خو څوک ژوند نه کوي

چې ستوري ښکاري او سپوږمۍ اسمان کې وي ولاړه
په داسې شپه کې ژړا خوند نه کوي

## د نازکاته

ګلبڼ وي د بلبلو بس یوازې زه او ته وي
دا ستا د تورو زلفو د اوربل لاندې مې شپه وي
نو دا به ډېره ښه وي
نو دا به ډېره ښه وي

ډېوه د ښکلې مخ دې بلید لې په تورتم کې
د ګلو په وږمو کې زما تا سره جرګه وي
نو دا به ډېره ښه وي
نو دا به ډېره ښه وي

کیسې د محبت وي بل مضمون په مینځ کې نه وي
د سترګو په ککو کې په زیر زیر د نازکاته وي
نو دا به ډېره ښه وي
نو دا به ډېره ښه وي

بالښت مې ستا څنګل وي او ما سر وی پکې ایښی
دنیا نه نا خبره او د مینې ولوله وي
نو دا به ډېره ښه وي

نــو دا بـه ډ پــره ښـه وی

بلبلی ګـه بېدلې کارغـان تـلـلـی وی لـه بـڼـه
د ســتورو اتــڼـونـه وی هـم مـینـه پـښـتـنــه وی
نـو دا بـه ډ پــره ښـه وی
نــو دا بـه ډ پـره ښـه وی

## د خالونو نوکران

ټـول تـبـر ئـې فـخـر پـه اوږدو ښکلو ویښـتو کوی
هـر مـازیـګـری ورتـه لـوګـی د سپـېلـنـو کـوی

ډ یـره نــازولـې ده د مــور او پــلار نــیـازبــېـنـه ده
قـدر ئې پـخـپـل کـورکې پـه شـان د مـېلـمنو کوی

چا چې ده لېد لی پـه ستـاېـلـو ئـې مـړېـږی نـه
یو خوا ئـې ښـایـست دی بل صفت ئې د پښـتـو کـوی

ډ یـر زیات عـاشـقـان ئې د خالـونـو خـد متـګـار دی
خدای خبر په کوم یو به د سپینی خولی پـیـرزو کـوی

هسې خلک وائـې چـې د مـیـنـی دود بـدل شـولـو
نـه ګوری ښـایـست ته څوک نظر ئـې پـه پـیسو کـوی

دا د مـیـنـی زور د زړه راښکونـکـو ښایـسـتـونـو دی
ځـینـی عـاشـقــان چـې نوکری د مـعــشوقـو کوی

دری او په څلـورو مـعشوقـو لا شــیـخ قــانــع نـدی

هره ورځ دعا کې سوال د حورو د کمځو کوي

ستوري په وطن مین دی نه دی په شین خال مین
ټوله شپه ګزمه د پښتونخوا په سر درو کوي

## ارمان

چې هر څو تجربه کار او لوی پوهان شو
چې بوډا شو د ځوانۍ خپل په ارمان شو

تجربه چې د بوډا زور د ځوانۍ وي
بیائې وګڼه چې ستوری د اسمان شو

## د مینی افسانه

خان په لکونو اخیسته جانان وړیا واخیست
سودا د عشق کې سودایې شو خان سودا واخیست

غرور د مینی د دولت زور ته سر نه ټیټوی
نوی لاڅه کوی چې لاس تری زوړ اشنا واخیست

زه خو مین یم معشوقه مې د ښایست جوړه ده
ما ښایستونو کې ښایست د پښتونخوا واخیست

خوله مې خطا نه شوه، په زړه کې ئې ساتلی نه شم
نوم د جانان چې مې په ډاګه بر ملا واخیست

د خپلې مينې اظهار نور د ليک په ژبه کوی
لاس کې قلم او کاغذ ستوري د سبا واخيست

## د عشق برخه

د سرو سره چې کيني، سرې کيږی
هر مجلس لرى تاثير، که څوک پوهيږی

چې خدای چالره احساس د مينې ورکړی
نوئې زړه بيا د جانانه نه صبريږی

زه دنيا کې، ته عقبا کې جانان غواړي
شيخه ستا او ځما کلي کله کيږي

ځما عشق حقيقی، ستا مجازی دی
حقيقت کله مجاز سره سميږی

د عشق کار کې د هر چا ده بيله برخه
د چا ستوری دی تياره، د چا ځليږی

## سوکالي

بې پښتون نه سوکالي د وطن نه شته
بې له میني خوشحالي د مین نه شته

د ژوندون د سبا جوړي هنګامې دي
هنګامې د سبا چا ویل چې نن نه شته

بلبلان خو ډلې ډلې پکې ګرزي
پابندي نوره د عشق په چمن نه شته

ای ناصحه خوله دې چوپ که ستوری وائي
دلته ستا د وینا ګانو شوقمن نه شته

## پسرلی

پسرلی د ګل ځواني ده یو څو ورځي وی تېرېږي
زه هغه پسرلی غواړم چې تل ځوان وي نه زړېږي

چې د مینې پاچاهي وي جذبه زړه کې د وروری وي
امن راشي بیا وطن ته، د زیاتې کډې بار بېږي

په نظر پابندي نه وي د هر چا نظر آزد وي
که باچا وي که ګداوي، یو شان حق لري ګرېږي

ستوری روڼ د خپلواکۍ وی، خوشحالي وي کور په کور
د پښتو چمن سمسور وی او پښتون بلبل چغېږي

## مانا

په لفظونو مین نه یم په مانا یم
خو لفظونو کې مې ښه مانا خوښېږي

ښایست ستا جانانه لویه معجزه ده
یاد لفظونو کې د ستوری نه ځائېږي

## پت

څه به کاندي شتمني د مال دولت
شتمني چې نلري دروغ صورت

شتمني دروغ صورت له دولت ښه ده
بیا له دې ښه عقل پوهه او عزت

بـې عـزتـه او بـې پـته ژوند خـونـد نـه کـا
پـت دی ټـولـو شـتـمنیـو کـې اوچـت

چـې د پـت او عـزت ژونـد پـرې ارام وکـړي
خـدایـه ورکـړی دومـره سـتوری تـه طـاقـت

## روغ صورت

روغ صـورت چـې نـه وي مـال او دولت څه دي؟
دولـت نـه غـواړم، هـسـتـی دروغ صـورت را

چې د خـپلـې پـښـتـو مـیـنـه پـرې وپـالـم
پـاکـه ربـه دومـره مـتـهـو کـې قـوت را

## تاریخ

تېر چې شو تـاريـخ شـو خيال د نن او د سبا کـوه
هـر کـار د مـلـګـرو او مشـرانـو پـه سـلا کـوه

پـند واخـله تـاريخ نه څه چې تېر شو بدلېدی نه شي
اوس بـه څـه کـوی ددی پـوښـتـني نـه بـيـنا کـوه

نـه دي ژونـدي شـوی چـيرته مـړی په ژړا بـانـدې
مـړي دی خـدای وبـخـې مـړو تـه دوعـا کـوه

پام کوه پـه نـوی کـول چـې دا ګـلان تـالا نـه شـي

هر څه چې کوی سوچ د ژوندون د پرمختیا کوه

خپلو هېره کړېده د حال ئې نا خبره دې
لږ شانی تپوس خو د پښتو او پښتونخوا کوه

پوهه دی څراغ که چې د ژوند تیاری روښانه شي
ستوری د اسمان شه لاندې ځمکې ته رڼا کوه

## بهانه

په نیمه شپه راپاڅېده نیازبینه په بهانه
دیدن ته د یار لاړه نازنینه په بهانه

ریبار سره وتلی وه ګلبڼ ته غلي غلې
چکر د پسرلی ته ګل ورینه په بهانه

ما خوب کې وه لېدلی چې ئې پریښودم یوازې
جرګه راسره نه شوه لونګینه په بهانه

پلو لاندې ئې وکتل خو مخ ئې رانه پټ کړ
په تور د مینی توره ماجبینه په بهانه

پرون چې ورته لاره کې په مخه باندې راغله

د ستوری سره تم نه شوه حسینه په بهانه

## لوزونه

چې رنګ دې د ځوانۍ په خپل رخسار کې خندوی
قسم دی چې ښایست دی په څو چنده زیاتوی

زرګونه عاشقان به دی د مینی طلبګار وي
چې ته د مینی اوره ارمانونه سوزوی

قاضی ته حاجت نشته، بیا به ستا حکم چلیږي
پخپله رضا خوښه بیا کوه چې څه کوی

د ستورو په رڼا کې به مې کلی ته رادرومې
ځما سره جانانه به لوزونه پخوی

## د هنر مینه

چې ګرزېدل ئې زده کول، ډیر غورځېدلی دې
بیا پاڅېدلی دې، په وړاندې تللی دې

چې غورځېدلو کې ماهر شو ګرزېدل ئې زده کړل
د زده کړې فن کې د ژوند راز ته رسېدلی دې

پښتنې مور ورته د ننګ او پښتو درس ورکړې
د پښتونوالی په قانون یې پوهولی دې

د وطن مینه کې پروا د ګړنګونو نکړې
خپلې پښتو د ګړنګونو پورا یستلی دې

ستوري حجرو د تنګ تکور سیلونه ډېر کړېدی
د هنر مینې شاعری ته هڅولی دې

د ژوند خواږه

پښتانه دې په خوږو د ژوند ماړه شي
هر پښتون دې د پښتو په غېږ کې شته شي

چې سلما او پوهیال پرې خوشحالېږي
مبارک دی د نسیم ستوري واده شي

## د عشق افسانه

بدله زمانه شوه اړوی د یاراني رنګ
نغمه د ژوند شوه نوی، نوی شو د تراني رنګ

مین شو بې ریباره مخامخ خبری کېږي
ښکارېږي چې بدلېږي نور د عشق د افسانې رنګ

زړی شولی نا چلی، تول په نوو پیمانو شي
سوچونه شولو نوی، ګلګون شو د پیماني رنګ

یو غلي اوښتون دې چې ذهنونه ویښوي
جام نوی، ساقي نوی، نوی شو د میخاني رنګ

شپه تېره شوه سبا دی د سهر ستوری راخېژي
سازونه شولو نوی، نوی شو د زماني رنګ

## تنده او منړه

یو ویل په تنده ده په منړه نده
بل ویل په منړه ده په تنده نده

ستوری ویل ماته خو داسمه بریښی
په دوارو ده په یو کې غونده نده

## د عشق فلسفی

د عشق فلسفی شي چې فکرونه وسېزي
په اور د خپل احساس کې دلیلونه وسېزي

د زړه او د دماغ کلی د عشق دنیا کې نشي
احساس د زړه غالب شي ، ټول سوچونه وسیزي

پندونه دی ناصحه د مینو نه په ښنګ که
په سوز کې به د مینی دی پندونه وسېزي

پروا د مال دولت کله کوي ملنګ د مینی
کچکول د محبت کې دولتونه وسېزي

د ستوری نه د غم پوښتنه مه کوه جانانه
ستا غم چې زړه ته راشي ټول غمونه وسېزي

---

یادونه: فلسفه پوه یا فیلسوف

## د محبت تورن

څه عجب غونډی قانون ددی وطن دی
په ګلبڼ کې د طوطیانو زاغ واکمن دی

یا به مري یا به توبه کړي له سندرو
چې بلبل او غزل خوان ددې چمن دی

د پېشو سره د مږي یارانه ده
په تېګۍ او په چلول د ژوند چلن دی

د رښتینی عاشق دلته ګذران ګران دی
چې په مینه او رښتیا باندې پتمن دی

خامخا به له نفرت ئې زړه خالی وي
چې په تور د محبت ستوری تورن دی

## مهلت

پیدایښت سره پلان د مرګ هم جوړ شو
ژوند د مرګ او پیدایښت ترمینځ مهلت دی

دې مهلت نه ګټه واخله که پوهېږې
خوشبختې د انسان مینه او محبت دی

## پردیس بچی

جوړ به په تندی چپه کاکل کړمه
ګل به دې د خښو د اوربل کړمه

رنګ به د پښتو مینی ته ورکړمه
دا پردیس بچی به خپل راخپل کړمه

پوهه به «پوهیال» سره ملګری کړم
پت به د «پتوال» د پتکی ول کړمه

تل خو به خاطر د« خاطری» کوم
«ښکلي» رانژدي شه چي دي ښکل کړمه

خیال به په «سوما»او په« هما» ساتم
پوخ به د «یما» ، «سنګر» مورچل کړمه

دي پردي وطن کي چي پردي نه شي
پام به په روزنه د «ایمل» کړمه

دا یوه بیلګه ده د پردیس بچو
نور پردیس بچی به یاد بل ځل کړمه

دا د سبا ستوری دی راخیږی به
دا تورتم ژوندون به پري بدل کړمه

غږ د ازادۍ به انګازه کړمه
جوړ د انګازی نه به غزل کړمه

لوی به ئي دیرو د پښتنو کي کړم
ټنګ ټکور رباب به ورسه مل کړمه

ستوری به رڼا راته د شپی کوی
او ربه د رقیب په زړګی بل کړمه

## ذهنی غلام

نه د ځان پکاربدی شي نه د قام
خدای دي مه کړه د پردو ذهنی غلام

د پردو ذهنی غلام ځان ازاد بولی
ما د ستوری اوربد لی دا کلام

## ګونګه مینه

سوی جل وهلی د ازاد ژوند ګل دری دي

څه چې څو جانانه دلته ګراني زمونږ شپې دي

دلته چې او سپږۍ څوک بد ته به تل ښه وائې
دلته چې ګړېږي څوک خپله ژبه نه وائې

دلته ازاد سوچ ته ودريدلي غرغري دي
څه چې څو جانانه دلته ګراني زمونږ شپې دي

دلته دي ړانده مين، نه ويني د يار ښکلا
دلته دي کاڼه مين، نه اوري د بنګړو شرنګار

دلته مينه ګونګه ده هسې اشاري دي
څه چې څو جانانه دلته ګراني زمونږ شپې دي

ستوري وائې دلته د پښتون بلبل چغار نشته
شيخ او په زاهد باندې باور او عتبار نشته

خوري حرامي غوښې خو په لاس کې ئې تسپې دي
څه چې څو جانانه دلته ګراني زمونږ شپې دي

## ښکلې جانان

خو به زلفې ئې په خيال کې لوبوومه
د خپل خياله حقيقت نور جوړومه

بـــاده راشـــه تـــا د ځـــانـــه ســـره بـــيـــايـــم
د خـــپـــل کـــلـــی پـــه کـــوځـــو دی ګـــرزومـــه

سر بـه کـړو ښـکـاره ځـمـا ښـکـلـې جـانـان تـه
کـــه تـــه ځـــې بـيـا ځـــه، زه بـــېـرتـــه نـه راځـمه

يـابـه زه هـم د خـپـل خـيـالـــه سـره خـيـال شـم
يـــابـــه ستـوری د بـيـلـــتـون راغـــورځـــومـــه

## د عـقـبا حوری

تـــه چـې لاس دوعـــا تـــه جـګ کړی ټول پـوهـېـږي
چـــې دي حـــوری د عـــقـبـا شـــيـخـه يـــاد بـېږي

چـــې خـــدای ستـوری تـــه پـــدې دنـيا ورکـــړي
نـــو دا ســـتـا وربـــانـــدې ولـــې نـــه لـــورېـــږي

## پوهيال

د پـــت، ښــبــګـړی او لـــه تـــوری جـــوړه يـــاره
پـوهـيـالـه وفـاداره، ننګـيـالـه لـوئ پـښـتون شـی !

لـــيـــری بـهـر لـه پـــښـتـونـخـوا
پـــردی وطـن کـې شـوی پـــيـدا

خو

پښتو ژبه زده کړه تا

پښتو کول دي هم زده کړیدي له پلاره
پوهیاله وفاداره، ننګیاله لوئ پښتون شي !

پیدا ایښتي پیدا هوښیار ئې
په هر یو
کار کې استاد کار ئې
رښتیا
پوهیاله پوهنیار ئې

پوهه دي ګل شه د قامي خدمت د پاره
پوهیاله وفاداره، ننګیاله لوئ پښتون شي !

ته په پښتو ژبه ګړیږی
په جرمني لا نه پوهیږی
پدې د تول تبر خوښیږی

په پښتو پال زړه کې د ستوري جوړي لاره
پوهیاله وفاداره، ننګیاله لوئ پښتون شي !

## بد بختي

چي له ژبې او کلتور خپل نه جدا شي
په ذهني کړکیچ اخته به خامخا شي

لـــه دې غـــتـه بـــد بـخـتـــی پـه دنـيـا نـشـتـه
چې قـاتـل څـوک د خـپـلـه ځـان او د اشـنـا شـــي

## اختر

مـــبـــارک دې لـــوی وړو تـــه دا اخـــتـر شـــي
هـر يـــوه تـــه دې نـــيـک مـرغ او بـخـتـور شـــي

ستوری ! ويـل اخـتـر بـه لا نـور خـونـدور شـــي
چې دا ټـول پښـتـانـه غـونـډ په يـو ټـغـر شـي

## پښتو ده مينه

پښتو کوم، پښتو پالم پښتون ځلمی يمه زه
د پښـتـو سر خـپـل زاروم د قـام بـچـی يـمـه زه

د آزادۍ او خـپـلـواکـۍ نـشـه په سر کې لـرم
د غـرو لـمـنو کې او سـپېرږم غـرنـی يـمـه زه

د اتـفـاق او وروروليۍ تـخـم مـالـت کې کـرم

ورېمه د سولي خپرومه پسرلي يمه زه

پښتني مور پيو کې څواک د قربانۍ راکړی
د قام وطن او د پښتو نه سپيلني يمه زه

پښتو ده مينه، چې د ميني ستوری تل ځلاند وي
خدمت د ميني به کوم چې څو ژوندی يمه زه

## بې توری تورزن

چې توره نلري او بې توری تورزن ګرزي
پدې جامه کې خو د کلي ټول دروغجن ګرزي

پخوا ئې بل ته، بيا ئې يار ته، اوس په يار وائې دروغ
دا رنګ دروغجن خو يارانه کې مخ تورن ګرزي

په دروغو جوړ جهان د ميني خو پايښت نلري
دروغجن مين پدې جهان کې کرغېړن ګرزي

ستوری بې پت دروغجن د ميني جوګه کله ګڼي

میـــنه د پـــت خـــبره ده، مـیـن پـــتمن ګــرزي

## د ځنګل قانون

انسـانیـــت لــه انسـانـــانـــو نـــه بېلـــیـــږي
دې دنــیـا کـــې د ځـــنـــګـــل قـــانـــون چـــلـــیـــږي

ســاتـــنـــدوی چـــې د حـــقـــوقـــو د انـــســان و
اوس ئـــې خـپـلـه دا حـــقـــوق پـــه لاس مـــاتـــیـــږي

تـــو پـــېـر ورک د مـــدنـــیـت او د وحـــشـــت شـــو
مـدنـیـت بـیـرتـه وحـشـت بـانـدې بـدلـــیـږي

انـــصـاف وتـــی دی د لـــفـــظ د انـــصـاف نـــه
عـــدالـــت دی نـــاچـــل شـــوی نـــه چـــلـــیـــږي

بـــې مـنـطـقـه شـــو منطق فـلـسـفـه پـــوچ شـــوه

خـــدای دې خېـر کـړي ستوری نـور بـه څه پېښـږي

## سـلا

لـکـــه چــې زړه دی ځــمــا زړه ســره ســـلا کـــړېـده
ځــمـــا پـــه زړه چـــې وه هـــغـه خـبره تـــا کـــړېـده

نـــور دریـبار د درلـیـــږلـــو حـاجـت پـاتـی نه شـو
وعـده د مینی دی پــه ډاګــه پــه رښـتـیـا کـــړېـده

د ګل ښـــایـسـت نـه چې پـه بڼ کې بلبلان زاریـږي
پــور دې ورکـړی دې که ګل د ښایست غـلا کـړېـده

نــور بــه رقـیــب او غــمـــازان د کلــی واړه تــښــتــی
چې اوریـدلـی دی، تـابـیـا خـــوښـــه ځـمـا کـــړېـده

چې د بخت ستوری مې د عشق اسمان کې وځلـېـدو
خدایـګـو د کلـی لــویـــو وړو راتـــه دعـــا کـړېـده

## توان د اتفاق

دا ملنګ د مینې دی، نه مال او نه دولت غواړي
زړه کې د انسان جذ به د مینې محبت غواړي

وائي پښتانه په ځانځانۍ کې غورېدی نه شي
سوچ کې ئې توان د اتفاق او دوحدت غواړي

هم په انساني حقوقو ننګه او پښتو کوي
هر يوه انسان ته ژوند د پت او د عزت غواړي

کلی نه وزی خوله اولسه وتل نه مني
تل په ټولنيز ژوند کې انصاف او عدالت غوړي

مينه ئې د سولې، ازادۍ سره تړلې ده
ستوري دې د سولې د نفرت ځينې نفرت غواړي

# لباسي يارانه

د مینې دود بدلېږي لباسي شوه يارانه
په زړه باندې يوه او په خوله بله ترانه

ملنګ له ښکلو خير غواړي ساقي د ميخانې شو
په غاړه کې کچکول دی او په لاس کې پيمانه

ساقي تسبې راخستې د جماعت په ګوټ کې ناست دی
په نوم د جانان اړوي يوه يوه دانه

باور د معشوقو په عاشقانو باندې کم شو
له زلفو جوړوي چې خپل جانان ته زلوانه

اخلاص کېده کوي د رومي يارانو د محفل نه
وينا او عمل شولو يو د بله بېګانه

بيګا ستوري ولاړو چې د بېرې ته زمونږ راغله
تکل ئې د جنګ کړی و د سولې په بهانه

## ښایسته سوچ

سوچ چې زلمی شي نو د خپل ښایست رڼا کې اوسي
مینه چې ځوانه شي نو لته د ښکلا کې اوسي

سوچ چې ښایسته شي ارادې د زور زیاتي نه مني
که دا په زړه کې د اغیار که د اشنا کې اوسي

د سوچ ښایست لا پسې زیات شي چې د مینې شي مل
شي ملکه د ښایست بیا زړه د هر چا کې اوسي

چې ملکې د ښایست ټولي په تعظیم دي ورته
هغه ښایست خو سردرو د پښتونخوا کې اوسي

د پښتنې ښایست چې ستورې ! پلوشې خپرې کړي
رقیبان واړه سودایي شو په سودا کې اوسي

## د رندو ښار

د رندو ښار دی دلته ښکلو ته کتل نه کړي څوک
سترګې دي پټې کړه څه مه وینه لیدل نه کړي څوک

دلته د شپې ورځې تو پير نه شته دی ورځ هم شپه ده
د تورې شپې نه رڼا ورځې بېلول نه کړي څوک

دلته پردی پېژند چلېږي خپل پېژند نه شته دی
په خپله نامه باندې د ځان هم نومول نه کړي څوک

دلته غوړېونه او ريدلی شي خولې ګونګې نه دي
خلک هر څه وائی خو صرف رښتيا ويل نه کړي څوک

دلته پوهان او ليکوالان ړانده دي نه ويني هيڅ
ستوري ! ته ووايه څه مه ليکه لوستل نه کړي څوک

## د اولس مېړني

د پردو چې څوک تقليد کوی، پردی شي
چې د خپلو کړي پالنه مېړنی شي

مېړنی د اولس نه مري تل ژوندی وي
که هر څو د ځمکې لاندې ئې کورګی شي

معنوي پانګه چې څوک خپل قام ته پرېږدي
د قامي ذهن نه کله بیا وتی شي

په تاریخ کې د غیرت به ئې نوم یادوي
چې د قام او د وطن نه څوک لوګی شي

چې د پت، ښېګړي، توري، وفا جوړوي
هغه ستوري په اسمان کې ځلېدی شي

## جانان

مینه چې وي مینه په پلکونو نه ماتېږي
تل د سره تېره یو تر بله نه ځارېږي

لاره د جانان د کور چې چا ته شي په نښه
ځي راځي مسکی شي د غه لاره کې ودرېږي

وینه مې د پت او د پښتو په نامه زار کړي
ځار چې له پښتو شي زړه مې داسې خوشحالېږي

تــورو بـــلاګـانـــو تـورتـــمـونـو تـــه اجـــل دی
رونړ د ســـبا ستــوری ! دی رڼــا کـــوي ځـلـيــږي

## د عـشق کاروان

مـيـنـه د ژونــد ســاه ده بې د مـيـنې ژونــد اوچـيــږي
چيرتــه چې وي مـيـــنه ژونــدون وده کــړي غــوړيــږي

نــه شـــي د نــفــرت او مــــيـنـې دواړو ســره کـلـــې
مـيـنـه چـــې وي زړه کــې د نــفـرت کـــډې بــاريــږي

زور ازمـــايـښـت شـــويـدی د زور نـتـيـجــه زور ده
ربـــړي خــو د ژونــد د مـحـبـت پــه لار حـــل کـيـږی

چا چې لار د سـولـې او محــبت ټينـګـه نيولــې ده
رسي به منــزل تـه کـه ستومـان نـه شي خـوځيږي

زه د عاشقانو د کاروان سره روان یمه
نشته دی ډیوې ته حاجت ستوری ! چې ځلیږې

## اختر (۲)

ورځ د اختر کې پیوستون مرور زړونه کوي
غاړه غاړې شي د یووالي تړونونه کوي

نفاق د کلي نه شړي د اتفاق په توره
مبارکۍ کې د اخلاص خپل سوګندونه کوي

فکر له بنده را اخلاص شوی دی ازاد ګرزي
خیال سره مل دی نوي نوي نوښتونه کوي

عقل د زړه احساس کې سیزي چې پخه شي مینه
د شپې د ستورو سره دنګو غرو سپلونه کوي

## د ژوند مستي

خپلې کوډلې نه د عشق په فن محل جوړ کړه
خيالي تصوير پکې د ښځو د اوربل جوړ کړه

چې د ښمنانو نه د مينې مين وژغورل شي
د پښتنې مينې د تيرو ټينګ مورچل جوړ کړه

چې بوډاګان پکې ځوانان شي هيلې هم شي پېغلې
رنګ رنګ رنګونو نه د عشق د باغچې ګل جوړ کړه

ستوري ته وايه چې مستي د ژوند تمامه نه شي
چې بې شرابو محفل مست کړي مست غزل جوړ کړه

## سرچپه د ستور

چې رڼا ورځ توره تیاره شي وایه بیا به څه کړي
د ژوند دستور که سر چپه شي وایه بیا به څه کړي

چې د وفا ځای جفا ونیسي په ټوکو ټوکو
چې دې اشنا سره پتنه شي وایه بیا به څه کړي

چې مېلمانه دې کوربانه شي واک راخپل کړي د کور
ته په خپل کور کې مېلمنه شي وایه بیا به څه کړي

چې غل قاضي شي او قاضي د غلا په تور تورن شي
جوړه ښکاره مقدمه شي وایه بیا به څه کړي

چې د سبا ستوری ماښام راخیژي نه وي رڼا
که د تقدیر دا فیصله شي وایه بیا به څه کړي

# تخیل او حقیقت

یو ویل شاعر دی تخیل کې ګرځي
د حقیقت سه[1] سرو کار نه لري

بل ویل نوښت د تخیل محصول دی
بې له نوښته ژوند بها نه لري

تل تخیل په حقیقت بدلیږي
قانون د ودې بل لار نه لري

چې د احساس لمبو کې ځان سوزوي
مینه سور اور دی خو انګار نه لري

چې تخیل ستوری موضوع کړه د شعر
په شاعر دا تور اعتبار نه لري

۱) سره

ورېوکی پتوال

د زاړه سوچ نه ځان وزګار کړه
نوی نوښت پلی په لار کړه

ښکلی وړوکی پتوال یار که
د عشق له راز ئې خبردار کړه

پوه ئې د مینې په دستور که
په پښتونواله ئې سینګار کړه

چې پښتانه په یو مرکز راټول کړي
په خپل وطن کې ځان واکدار کړه

چې قام ولس کې ورورولي راولي
هر یو د بل ځینې ځان زار کړه

چې کلي کور کې تربګني ورکه کړي
ژوندون د سولې په کرار کړه

چې د پښتونګلان غوټۍ ونیسي
پښتون بلبل پکې چغار کړه

د پښتونخوا بېرغ اسمان ته جګ کړئ
چې پرې بیا ستوری افتخار کړه

## ګونګه ژبه

قلم مې بیا د لیک په ګونګه ژبه ګړیده

دا ستا د شوخو سترګو په صفت نه مړیده

لفظونه د رنګونو ئې راتول ستا د ښکلا کړل
زرګونه ئې راجمع کړل بیا هم به کمیده

تصویر ئې د لفظونو جوړوو دا ستا د حسن
تر نیمې شپې لګیا و هډو نه ستړی کیده

د تورو زلفو شپه کې دې د مخ ډیوه وه بله
خالونه د تندي دې لکه ستوری ځلیده

## ځان پرستي

دا دستور د مینې هر ځای کې چلیږي
معشوقه د عاشق خپل ځنګ کې خوښیږي

عاشق نه مني په مینه کې شریک بل
د خپل ځان احساس په مینه کې زیاتیږي

ستا د مینې دود جدا دی ای وطنه
شریکان پکې ملګري ګنل کیږي

چې په تا شومه مین ښکلا پرست شوم
ځکه ځان مې ستا په مینه کې ورکیږي

راته وایه ته به ولی ښایسته نه ئې
چې دې ستورې د اوربل په سر ځلیږي

## نوی ژوند

چې زړه د عقل کور ته لاړ شي د سلا لپاره
لکه د شمعې سوزوي ځان د رڼا لپاره

ټول پښتانه په یو ټغر یو نغري ټولوي
د نوي ژوند او دوطن د پرمختیا لپاره

د مینې جوړ شولو انسان په مینه پایي انسان
مینه پیدا کړه خدای د ژوند د پایښتیا لپاره

زړه چې د مینې وي خالي نو د نفرت به ډک وي

نـفـرت ابــادي ورانــوي، بــد ، دی هــر چـا لـپاره

د وطـن مـينـه کې که سوزی ستوری سـوزه پـکـې
وطــن لـيلا ده سـره دې ځـار کـړه د لـيلا لــپاره

## برګودر

پـتـه خـونـه ده چې زه ځـه کـوم د چا پـه خـاطـر
د بـرګـودر لاره څـارمـه د اشـنـا پـه خـاطـر

هـر مـازيګـر اشنـا زمـا پـه دغـه لار تـيـريـږي
ګـل ئې پـه غـاړو کې کرمـه د وفـا پـه خـاطـر

مـنـګـی اوبو پـه سر ګـډيږي مـين سـپـل تـه ورځي
پـيـغلـې لـه مـخـه پـلـو لـرې کـړه د چـا پـه خـاطـر

داسي نـغـمه شـي چې بـوډا زړه پـه مستـۍ راولي
د ځوانۍ ياد ئې شي تـازه ځـوانـې دنيا پـه خـاطر

چې د ماښام ستوری راخيـژي جانـان کـور تـه راځـي

د شپې تـیارې بیا تـیروي د سپین سبا پـه خـاطـر

## د محبت سندره

زرې زرې مې زړه دی خو مې اوښـکـې نـه تـویـېږي
که اوښکې تویومه نو اغیار پـرې خـوشـحـالـیږي

تـوان د مـحـبـت او جـذبـو دوا ړه لـرم زړه کې
نو ځکه مې احساس د پاکې مینې نه ځـاریـږي

زما د مینې تـول ځـوک پـه ډبـرو کـوی نـه شـي
راجمع که ټول غرونه کړي بیا هم پسې کمیږي

پـه بـڼ کـې د پـښـتـو بـه بیا بـلبلې پـه ګـډا شي
قامي وحدت ګلونو غوټې کړې دي غوړیږي

غوړونه که اغیار خپل غوځوي نو دائې وخت دی
زمـا د مـحـبـت سـنـدره لا پـسې جـګـیږي

دا ستوری د اسمان که ځوک په کاڼو باندې ولي

پـه سـر بـه ئـې دا کـاڼـي لـه اسـمانـه راوریـږي

## سـربـازي

مـینه پـښـتـنـه ئـې پـه مـسـتـۍ ده، نـه تـمـیـرږي
سـرسـره کـړي لـوبـې سـربـازۍ تـه روانـیـږي

خـوي ئـې د اوبـو دی، چـې هر یو لوښی رنګ نیسي
کلک دی د فولاد په شان چې رنـګ ئې نه بدلیږي

وخـت بـه بـدلـوي او نـوی عـصـر راولـي حتمي
دې د وخـت غـلام نـه دی چې وخـت سـره ګـډیـږي

پـته د جـانـان د کـور خـو ستوري تـه معـلـومـه ده
لاره کــه اوږده ده، پـــه مـزل بـانـدې لـنډیـږي

## د عقل پېمانې

پرخه د ګل په مخ پرته وه پاڼې نه ښکارېدې
بلبلان ګل ته په سجده وه زما ته یادېدې

زړه مې په خیال کې ستا د زلفو نه تالونه جوړ کړه
د ځوانۍ هیلې را ژوندۍ شوې پکې وځنګېدې

چې په تالۍ کې د پښتو ئې خوشبوئې خوره کړه
احساس د مینې کې د عقل پیمانې ماتېدې

ستوري ته یاد شو د ځوانۍ هغه خواږه وختونه
هر مازیګر چې تلې ګودر ته په دې لار تیرېدې

# د چینې اوبه

نه ماتوي تنده د شرابو پیالی مه راوړه
لاړ شه ساقي لاړ شه د چینې یخی اوبه راواړه

دا اوبه د جل وهولو تنده ماتولي شي
خیال ئې د جانان په تورو زلفو لوبولي شي
زور مستي د مینې محبت ئې پارولې شي
یو منګی په سر او دوه په غیږه کې درانه راوړه
لاړ شه ساقي لاړ شه د چینې یخی اوبه راواړه

زه ډیر زیات ستومان یمه له لېری نه راغلي یم
دنګو دنګو غرونو په سرونو راختلي یم
ګل کرمه ژوند کې په تکل ئې راوتلي یم
ناخي به بلبلې صرف دیرال ورته بس ته راوړه
لاړ شه ساقي لاړ شه د چینې یخی اوبه راواړه

تا که ساقي چیرته بې شراب نشه لېدلې وي
اوړي کې شومړي زمونږ د کلی به دې سکلی وي
رنګ رنګ خمارونه ئې په هر ګوټ کې ساتلې وي
ستوری ته شومړو سره سوکړک او لږ سابه راواړه
لاړ شه ساقي لاړ شه د چینې یخی اوبه راواړه

## د حرکت فلسفه

پښتني مور د ننګ ځانګو کې ځنګولې یمه
پلار په اوږه په غرورغو کې ګرزولې یمه

د پت، ښېګړې او وفا، پتکی به کوز نه کړمه
پښتون زلمې یم په پښتو باندې ښاغلې یمه

د ازادۍ او خپلواکۍ نشه په سر کې لرم
د سربازۍ ډګر ته تل په ګډا تللې یمه

څمه جانان پسې اخر به ئې د ځان کړمه زه
د حرکت په فلسفه ښه پوهېدلې یمه

ستوري یوازې نه دې هر یو انډ یوال ئې وائې
خدمت د قام او د وطن ته ملا تړلې یمه

يار مې مالـيار دې مينې بڼ کې ګل کرل غـواړي
د اغـزو جـرړي اوس لـه بيـخـه راويستل غـواړي

بلبل پرېږدي چې د ګل بوټو کې سندري وائي
تورکارغان نه پرېږدي د باغه ئې شړل غواړي

د باغ په خنده کې د فن هنر ډېره جوړوي
د ازادۍ نغمه رباب کې غږول غواړي

چې د مجنون او ليلا عشق ورته حيران پاتي شي
پخپلو وينو د عشق سور کتاب ليکل غواړي

خپلې پښتو ته د هسک ستوري سلامي ودروي
جنډه د سولې جګوي هسک ته ختل غواړي

---

يادونه: هسک جک ته وائي خو د بيټ نيکه په شعر کې د اسمان په مانا کارول شوېدي چې هسک ولاړ دی درناوی کې يدې شعر کې هم د اسمان په مانا کارول کېږي

## نوی کال

نوی کال ندي چې زوړ سوچ پکې ښاخونه کوي
نوی کال هغه دی چې نوي سوچ ګلونه کوي

چې سوچ زلمې شي لیکوالان د قلم توره واخلي
د نوی ژوند د پاره نوی نوښتونه کوي

د نوی کال سره جوړه چې پسرلې تل راځي
بخت د بلبلو دې چې باغ کې اتڼونه کوي

چې سمه او غر پکې سمسورشي، اثروکړی په زړه
غم کډه وکړی خوشحالی ځپلې زړونه کوي

چې عاشقان پکې دمه شي د اوربل سوری کې
د لونګین خوا کې سینې په سر خوبونه کوي

چې زوړ زړه ځوان شي، بوډاګان هم په مستې راولي
سترګې د زړه سره روانې شي سیلونه کوي

په ستوري باندې نوي کال، پسرلی هله راځي
چې پښتانه د خپل یووالې تړونونه کوي

## د بابا ژبه

مین مو لباسي شولو وفائې هېره کړېده
عشق کې زرپرسته شو، ښکلا ئې هېره کړېده

مــا ســره ئــې څــو ځــلــي وعــده د راتــلــو کــړي وه
هسې انــتــظــاريــم، وعــده بــيا ئې هــېره کړېده

ښکلو سره لاړ زاهــد اوږدی تسپی پــه غــاړه کــړی
نور ســودا پــه لاس کــوي نســيا ئــې هېره کــړېــده

ما ويلي چې رنګ به د پښتو مېنې تــه ورکــانــدي
پوه نه وم پښــتو او پښــتونــخــوا ئــې هــېره کــړېده

ستوري ويلې څه پرې که ډېر شو د خوشحال خان لمسي
خــپــلــه خــوږه ژبــه د بــابــا ئــې هــېره کــړيــده

## تو پانجال

اوربــه بــل کــړي د رقــيــب پــه زړګــي بــانــدی
که يــو ځــلــی شــي مــوســکــئ راتــه وخــانــدي

ستا د زلفو تو پانجال[۱۰] کې چې څوک ګير شي
بــيا تـــرې کــلــه نــو وتــلــي شــــي د بــانــدې

کښکې زه دا ستا د غاړې لونګین وی
ځنګېدلې دې همېش په سینه باندې

د کبیر ستوري به هله زړه دمه شي
چې اوده شي ستا د تور اوربل د لاندې

١ ) توپانجال د مرغیو د نیولو یو ډول جال دی چې ډېرې مرغې پکې په یو وار نیول کېږي.

## د وینو رنګ

څو به جانانه تا سره مینه په غلا کوومه
قسم دې نوره ئې په ډاګه برملا «١» کوومه

خلک چې هر څه وایي ودې وایي ، خولې ئې خپلې
نه د ناصح، نه د رقیب د خیال پروا کوومه

خیال که ساتم، جانانه ستا به ساتم ستا د میني
د زړه له کومې نه لوزونه د وفا کوومه

ما خپلې میني ته د زړه د وینو رنګ ورکړی
پښتون زلمي یمه پښتو به خامخا کوومه

بیګا چې ستوري و ولاړ او ته په بام راختې
په زړه دې څه وو دا پوښتنه اوس له تا کوومه

---

۱) ښکاره

## پلو

په فن د میني خوږولې شي ترخې خبرې
تا په کنده تللې دې د خپلې خولې خبرې

د پلو لاندې د جانان لور ته کتل دې زده دي
د زلفو دام کې د مینو رانیول دې زده دي
د محبت کیسې په زوره اوږدول دې زده دي
د کاڼي کړښې دې د میني دا خوږې خبرې

تــا پــه کــنـډه تللــې دې د خـپلـې خـولـې خـبـري

ستا پـه خـبرو کـې نـوښـت او دلـيلـونه شته دي
د محبت او پـت غـيـرت پـکـې رنـګـونـه شته دي
د نوي ژونـد د پـاره نـوي ارزښـتـونـه شـــته دي
د وفا تـوکـې دې جـانـانـه سـتـا پـخـې خـبـري
تـا پـه کـنـډه تللـې دې د خـپلـې خـولـې خـبـري

خـپله پـښـتو مـيـنه کـې سـر تـه رسـولـی شـي تـه
ډګـر د مـيـنـی کـې لـه سـره خپل دنګـلـی شي تـه
سـتوری شـاهـد دې چې د مينې دود پالـلـی شي تـه
د پـښـتو ډکـې دې د مـيـنـې سـتـا درنـې خـبـري
تــا پــه کــنـډه تللــې دې د خـپلـې خـولـې خـبـري

## ديدن

ددې ژونـدون سپـرلـي بې تـه ښـکاری خزان جانانه
تا نه لوګی، تـا نـه شـم ځـار، تا نه قربـان جانـانـه

پـه خـوب کـې هـره شپه راځـي پـه وينـه هم که راشي
دا بـه پـه ما بانـدې احسـان وي ستـا بې شان جـانـانـه

بې ستا د ياده مې بـل يـاد پــه زړه کـې ځـای نـلـرې
ستا دې قسم وي هېر دې نه کړي خپل جانان جانـانـه

ما درته لاره کې ګلونه درېدی کرلی
داستا دیدن مې د زړګی دې لوی ارمان جانانه

هر شپه ستوري ما او تا ته غلي غلي ګوري
زمونږ د مینې او وفا لیکي داستان جانانه

## د نظر آزادۍ

څومره به ښه وي چې د مینې ډک ژوندون جوړ کړو
دا وران ویجاړ او کنډواله کور د پښتون جوړ کړو

چې د خپل کور واک کړو راخپل او بیا واکمن شو د کور
د پر مخ تګ او سوکالۍ په لورې یون جوړ کړو

چې د پښتو د پسرلی ګلان غوټې ونیسي
په یو ټغر د ټولېدو قامي ترون جوړ کړو

چې د پوهنې قافیلې پکې شاډوله کوي

د قام اولس په ژوند کې داسې اوښتون جوړ کړو

چې عاشقان پکې راغونډ وې ټول د عشق ښوونځی کې
د سوچ او فکر آزادي د عشق مضمون جوړ کړو

چې د نظر د آزادۍ ستوري ځلېږي پکې
په پابندۍ وي پابندي داسې قانون جوړ کړو

## داستان

اسماني کتاب کې مالوستي بيان
چې تعبير شته د خوبونو دانسان
د خوبونو يوه کيسه درته کوومه

پېښه شوې ده په ملک کې د کنعان
د يعقوب عليه السلام دولس ځامن و
خو په ټولو کې يوسف و ورته ګران

لا يوسف عليه السلام کوچنی ماشوم و
چې يو خوب ئې وليدلو په دا شان
لمر سپوږمۍ، يوولس ستوري شي راټيټ

په سجده شي ده ته واړه همزمان
چې یوسف علیه السلام پلار ته خوب ووي
پلار ئې ډېر شولو په غم کې سرګردان

ویلی ځویه دا خوب ونه وایې چا ته
هسې نه چې کړي د ګور دې بند بوان
لمر، سپوږمۍ دی پلار او مور ، ستوري دې ورونه

په تعظیم به دې پابند وی هر زمان
چې نور ورونه ئې د خوبه نه خبر شو
د وژلو د یوسف ئې جوړ کړو پلان

راغله پلار ته ئې ویل یوسف مونږ سره پرېږده
چې سبا ته مونږه ښکار ته یو روان
پس له ډېري زارۍ پلار ورسره پرېښود

ښکار ته ووتل ټول ورونه ئې ښکاریان
هغوی دې ژور کوهی ته ورګوزار کړ
خو یوسف د کوهی ډډ ته بچ کړ ځان

پلار ته ورکړلو دوی دا رنګه خبر
چې لېوه وخوړ یوسف ، راغله لېوان
چې یوسف کوهی کې دری ورځې کړي تېری

خدای په دغه لاره راوسته کاروان
چې کوهی ته ئې بوکه خپله ګوزار کړه
د اوبو په ځای راوخته یو ځوان

ځوان ئې مصر ته بوتللو له کنعانه
هلته بل له سره پېل شولو داستان
اسماني کتاب کې مالوستې بيان

چې تعبير شته د خوبونو د انسان
د کاروان خاوند يوسف په عزيز خرڅ کړ
ډېر مالدارو، خوئې نه لرل بچيان

عزيز وويل زليخا ته، اى مېرمنى
د يوسف سره چلند کړه مهربان
زليخا شوه په يوسف باندې مينه

د عشق اور کې شوه ستې پتې سوزان
لاس ئې واچوو يوسف ته، شوه بې صبره
د يوسف کميس ته ورسېده زيان

چې عزيز د دغه پېښې نه خبر شو
په يوسف باندې ډېر زيات شو بدګمان
يو خپلوان ما شوم د دوئ غږ. کړ زانګونه

پړ يوسف دې، که ئې څېرى وي ګريوان
که ګريوان ئې څېرى نه وي نو پړ نه دې
خو سره د دې يوسف شو بندېوان

په دې وخت کې د باچا ساقي، نانوايې
په الزام د زهر و شولو زندانيان
په دوى تور و چې ئې کړي اراده وه

چې په زهر و باچا ورک کړې له جهان

نانوايي او ساقي ولېدل خوبونه
چې يوسف ئې تعبير وکړلو روښان

نانوايي په سر ټوکرى وه د ډوډۍ
خو ډوډۍ ترې نه تالا کاندې مرغان
ساقي وويل چې ما خوب کې دې لېدلې

بيا ساقي شم د مصرى باچا ريان
پوه يوسف ورته خوبونه کړل مانا
چې پوه ته وه فايده، بل ته تاوان

يوسف وويل نانوايي ته په دار کېږي
غوښې ستا به شوکوي ځناوران
او ساقي به زرله بنده ځيني خلاص شي

د باچا به شي نوکر بيا هغه شان
څه وخت وروسته باچا خپله ولېد خوب
چې تعبير ته ئې راجمع کړه پوهان

باچا وويل، ما لېدلي داسې خوب دې
چې اوه خوار غوايې وخوري چاق غوايان
او اوه وچ وږى راتاو شي اووه شنونه

دا شنه وږي کړى وچ کلک د ځان په شان
ويل پوهانو دغه خوب دې ډېر پيچلى
چې تعبير ئې مونږ ته نه ښکاري اسان

ساقي غږ کړ چې په جيل کې يو زلمې دي

د خوبونو د تعبیرلري ښه توان
باچا وویل دا زلمي راولئ دلته

چې د خوب د مانا وکړم تري پرسان
یوسف راغی باچا خلاص کړله زاندانه
د باچا د خوب د راز شو ترجمان

یوسف وویل اووه کاله سوکالی ده
چې هر څه به وي ډیر تېر او پریمان
بیا اووه کاله قحطی ده راروانه

د هیڅ څه درک به نه وي په جهان
د مصریانو به تنګسه او ستونزی نه وي
سر د اوس نه که سپما کاندې شیان

باچا کړلو یوسف دې کار کې واکدار
چلېدلو ئې په ټول ملک کې فرمان
اسماني کتاب کې مالوستي بیان

چې تعبیر شته د خوبونو دانسان
چې عزیز مړ شو واده ئې زلیخا کړه
د یوسف شولو د میني کورودان

قحطی راغله په جهان ، مصر اباد وو
هری خوا نه به راتله سوداګران
د یوسف ورونه خو هم مصر ته راغلل

چې ترلاس کړي ضروری د ژوند شیان
یوسف ورونه پېژندل خو دوی پوه نه و

ورســـره بـــه ئـــې ډ پـــر زيـــات كـــوو احســـان

بنيـا مـيـن پـــه نـوم سـكـه ورور د يـــوسـف و
د هغه بـار كـې پـټ جـام كـيـښـود مـيـزبـان
په بهـانـه د غـلا ئـې بنيـا مـيـن ايسـار كـړ

حـكـم وكـړه پـــرې د مـصـر قـانـون دان
ورونـو ئـې وكـړلـه زارى، خـو كـارونـه شـو
نـا امـيـده شـولـو، بـار يـې كـړل اوښـان

چې يعقوب عليه السلام پـه حـال خـبـر شـو
تودو اوښـكـو نـه ئـې جـوړ شـولـو بـاران
چـې ئـې ورونـه دوبـاره مـصـر تـه راغـلـل

نـو يـوسـف ورتـه وروپـېـژنـدو ځـان
ورونـو ئـې ورسـو پـلار تـه دا پـيـغـام
چـې ژونـدى دې يـوسـف، سـتـا د زړه درمـان

د پلار درد ئـې شـو بـدل پـه خـوشـحـالـۍ كـې
ويـل لـېـدل مـې د ځـامـنـو دې ارمـان
لـنـډه دا چـې پـلار او مـور ئـې دلـتـه راغـلـل

شـولـو مـصـر كـې د ډېـره تـول خـانـدان
مـور او پـلار، ورونـه خـدمـت كـې د يـوسـف و
لـمر سـپـوږمـۍ، يـوولـس سـتوري د اسـمـان

اسماني کتاب کې مالوستي بيان
چې تعبير شته د خوبونو دانسان

---

يادونه: ددې داستان متن د قران کريم د ديارلسمې ( ۱۳ ) سپاری سوره:يوسف څخه اخستل شويدی عزيز د مصر يو مالدار سړی و چې زليخا ئې ښځه وه او ريان پدغه وخت کې د مصر باچا وو ددې داستان په نښتون کې دا هم راپه ګوته کول ضروری دې چې زه د ساپوهنی په رڼا کې د خوب مانا د يوه کتاب د ليکلو د پاره په څېړنه لګيا يم. د پوهنيز دود سره سم د څېړنې په نظرياتې برخه کې د خپلې وسې پوری ټولو هغه ليکنو ته نظر اچول پکار دې چې د خوب مانا په باره کې وي. پدې لړ کې ما د خوب ديني تعبيرونو ته هم باملرنه وکړه. کله چې د يوسف (ع) کيسه د خوبونو د مانا په تړاو کې ولوسته او بيا مې په ذهن کې راغونډوله نوددې داستان څوبيته جوړ شو چې وروسته بيا بشپړ شو.

## مسته خندا

په ديدن مو نه شومه غور پرې اشنا وکړه
ستا دې قسم وي سبا پېښه په ديخوا وکړه

مينه په تلو راتلو زياتېږي دا رښتيا ده کنه
پدې ښه سوچ وکړه د زړه سره سلا وکړه

ما د ښو په غشو مه وله مسکی شه راته
چې زړه مې مست کړي راسره مسته خندا وکړه

بې وفا نه شي چې د زړه د مينې کور ورانوي
د مينې ژوند کې د وفا سره وفا وکړه

که راتلای نه شې نو د شپې د بام په سر وخيږه
ستورو ته وګوره پوښتنه ترې ځما وکړه

# د ځواني رنګ

د ځواني خیـال دي چې خیالونه ئې تماشي ته راځي
پښـتـنې سوچ دي چې سوچونـه ئې دېرې تـه راځي

نوې نوښت دي چې د نـوې وخــت ریـښـې راسپړي
یو داسې ساز دي چې د بـم نـه زېر پردې تـه راځـي

څه معـجـزه ده چـې کـوډلـې نه بـنـګـلـه جوړوي
د مینې ځواک دي چې ځواکونه ئې سـجـدې ته راځي

رنګ ته د مـیـنې ستورې زړه د ویـنـو رنـګ ورکړي
یو داسې رنګ دي چې رنګونه ئې ننـدارې تـه راځـي

# د دنګو غرونو وطن

د ګلاب د ګل د پاڼو نه ښایسته ده
بختور یم چې مې وینه پښتنه ده

جوړه شوی ده د ننګ او له غیرته
په توکونو هم د پت عزت درنه ده

دا زما پښتو هم ژبه هم قانون دی
چې هر څومره پرې ګړېږمه خوږه ده

دا ځما ښکلي وطن د دنګو غرونو
معجزه ئې د ښکلا هر دره ده

حاجت نه شته د ډېوې په نیمه شپه کې
د سپوږمۍ سره د ستورو بدرګه ده

## د مینې هنر

په سترګو کې راګوري ناکراره افسانه
راځي زمونږه چم ته غلې غلې په بهانه

په خپل ښایست مغروره ده، ننګیالـه مـېړنـۍ ده
پــرون ئــې د نــاصـح پــه سـر کــړه مــاتـه پـیمانـه

منمه چې د میني پـه هـنـر بـانـدې پـوهــېږي
چې راغله میخانی ته ، خـماري شـوه مـیخـانـه

غـماز ته ئې ګوابښ وکړ چې شړۍ دې کـه راغـونـده
بـلـبـل پــرېــږده چــې وواېــې د مـیــنـې تــرانــه

د سـتـورو پـه رڼا کـې زمـا مـیـنـه بیا تـېـپه شـوه
ښــکـارېـږي راتــه داســې چــې بـدلـېږي زمـانـه

## خمار

مـوسـم دی د ګـلـونـو پـسـرلـی دې نـوبـهـار دی
راشــه ای جـانـانـه زړه مــې تـا تــه انــتـظار دی

مسـتـی دي بلـبـلې مسـتی مسـتی ګـډا ګـانــی کړي

مست به دي خيالونه شي مست شوی ټول ګـلـزار دي

خـونـد بـه د ګـډا واخـلـی د ګـل بـه نـنـداري وکـړئ
دا موسم خو ټـولـو مـو سـمـونـو کـې سردار دي

هـره خوا رنګـونه د ګلونو زړه راښـکـوونـکـې دی
درونـد نـظـر ګـلـونـو تـه خـو خـامـخـا پـکار دی

سـتوري سره جام به د وطـن پـه نـامـه پـورتـه کـړئ
ټـول محـفـل خـمـار دی ساقـي هـم خـپـلـه خمار دی

## قسمت

پـیـښـه پـدې خـوا وکـه مـوسـم د ګـل تـېـرېـږي
مـیـنـه محبت پـه تـلـو راتـلـو بـانـدې زيـاتـېـږي

ما د محـبـت پـالـګـر ته لاس د قـسمت ونـیـوه
وی ویـل چـې قـسـمـت د ارادی پـه زور بـدلـېـږي

چا چې د خپل ژوند د بدلېدو اراده کړېده
خامخا منزل د نوی ژوند ته به رسېږي

پاخېږه روان شه اراده د خوزېدو وکه
هغه ډنډ خوسا شي چې اوبه ئې نه بهېږي

ژوند خو حرکت دې وخوزېږه چې ژوندی اوسې
ستوری د قسمت به دې تورتم کې وځلېږي

## سیل (۱)

ورشه تخیله سیل مې وکړه ماشومتوب کې
زه هلته ورتلی نه شم دوران د زلمې توب کې

دې پړاو د ژوند ته زه په خټ بېرته ورتلې نه شم
دا قانون د ودی (۳) د قدرت زه بدلوی نه شم
اوس چې لوی سړی یمه بیا کوچنی کېدای نه شم
دغه کمزوري ده د سړی په سړیتوب کې
ورشه تخیله سیل مې وکړه ماشومتوب کې

وګوره چې چا د وطن مینې ته روزلمه
چا په پښتو ژبه، پښتونواله پوهولمه
چا به نازولم، چا به زړه پورې نیولمه
چا سره به لوبې کړلی ما په وړکتوب کې
ورشه تخیله سیل مې وکړه ماشومتوب کې

پام وکه چې چا به په ځانګو کې ځنګولمه
چا به په اوږه د قام دیرو کې ګرزولمه
چا به مازیګر د ګودر غاړی ته بیولمه
چا ستوري ته وښوده وفا په مینتوب کې
ورشه تخیله سیل مې وکړه ماشومتوب کې

۳ ) وده پرمختیا

## سیل (۲)

ورشه تخیله سیل مې وکړه ماشومتوب کې
زه هلته ورتلي نه شم پیدا سې لیونتوب کې

دغه لیونتوب ته زه په شا باندې کتی نه شم
دا قانون هېڅ کله په هېڅ حال زه بدلوي نه شم
اوس چې لوی سړی یم دوباره ماشوم کېدای نه شم
ورک رانه ښایست شو د ارمان په سړیتوب کې
زه هلته ورتلي نه شم پیدا سې لیونتوب کې

لوی شومه سرې شوم ماشوم والی مې هېرېږي نه
خیال او تصور نه مې دا ستا ارمان بېلېږي نه
کوم هغه ساعت دی چې په غم کې مې تېرېږي نه
وینم تېر وختونه زه په ویښه او په خوب کې
زه هلته ورتلې نه شم پداسې لیونتوب کې

چا به په نازونو ډېره مینه پوهولمه
وګوره چې چا د وطن مینې ته روزلمه
چا به نازولم چا به زړه پوري نیولمه
ستوري وائي بیل شو د جذبو په پیغلتوب کې
زه هلته ورتلې نه شم پداسې لیونتوب کې

---

۱) لیونتوب د محبت په ژبه کارول شوی دی چې د احساساتو او جذبو ناکراری ده او دماغی خلل او د عقل نیمګړتیا نه ده.

## د جنکو دوعا

زمونږ د کلی جنکو ورته دوعا کړیده
چې مرور جانان ئې بیا ورته خندا کړیده

زړه ئې د مینې او وفا په تار ترلی خوښ دي
ځکه ئې هر وخت کې د خپل جانان رضا کړیده

د مینې تور باندې چې دا مین په دار نکړې !
دې خو یوازې نه دې مینه خو هر چا کړیده

هغه د ښکلو د مالت مالیار کیدای کله شي
چا چې په مینه کې د سره او مال پروا کړیده

ګورئ ځنګلونو ته سیلونه د ښترو کوي
د کونړ غرونو په سره بیا ستوري رڼا کړیده

## د وفا لور

زه د وفا لور یمه وفا لره پیدا یمه
ته که راته هر څه وائي ، زه به وایم ستا یمه

اوس که مینه ګرانه ده، خیر دی ګوزاره کوه
کله چې اسانه شوه، بیا به درته وایمه

بوج ځما د ذهن خو د میني اورسېزلی دی
زه لکه ډیوه په سوزېدلو کې رڼا یمه

ما دي بنګ کرلی چې خماره دا دنیا کړمه
لو که مې د بنګو ګډ کړتا به ورته بیا یمه

ستوري چې د مينې فلسفې ډېري لوستلې دي
ماته ئې ويلې چې هم مينه هم ښکلا يمه

## د جانان ستر ګې

د نوي ژوند سندره، ميداني ساز سره وايم
که هر څه راپيښېږي، د جانان ستر ګې مې ستا يم

جامونه جګ وومه چې خمار مې لا زياتېږي
خمونه تشوومه چې مستۍ ته مې زړه کيږي
حجرې سمبالوومه چې نغمې پکې غږېږي
د خپل سوچ ټنګ ټکور ته بې د مې خوښ په ګډا يم
که هر څه راپيښېږي، د جانان ستر ګې مې ستا يم

غيرت راويښوومه غيرتمنو په سينو کې
هنر ژوندي کوومه هنر مندو په ټپو کې
د ننګ ګلان ټومبمه د ځلميانو په شملو کې
زه ډېر مين په پت، ښيګړه توره او وفا يم

که هر څه را پيښيږي، د جانان ستر ګي مې ستا يم

ګوره پاس آسمان ته چې په ستورو ښوره ښکلې دی
دا د ننګ وطن په ټولو ښکلو کې ښاغلي دی
ما ئې په سيندونو، دنګو غرونو زړه بايللي دی
هره يوه دره ئې وايي زه ښکلې يم زيبا يم
که هر څه را پيښيږي د جانان ستر ګي مې ستا يم

## د درخو خور

خدای ورکړي د ښايست او ښکلا زور
لګولی دې په زړونه باندې اور

پام کوه چې مورئې نه شي را خبره
د مړوند بنګړي ئې ډير زيات کوي شور

توری زلفي ئې کوږې کوږې ول ول دي
بختور دې چې په مينه ئې دی تور

د ادم درخو کيسه دی اوريدلي
د درخو راته ښکاريږي سکه خور

د شپې ستورو سره بام په سر جرګه کړي
په ناز ناز کړاروي ورکوټي ورور

## د وطن ناوی

ما چې پـخپل نـصيب ژړا کړه ترې خندا جوړه شوه
تـا چې خيـرې راتـه کولـې ترې دوعـا جـوړه شوه

خدای دې خيرې کړې درنه هيرې چې دوعـا کـوی تل
ستا په دوعـا بـانـدې زمـا د عـشق دنـيا جـوړه شوه

ما خـپل ارمان د بې وسی اور کې لوګې لـوګـې کـړ
د بې وسی نه مې د سوچ رنګ او ښکـلا جـوړه شـوه

مـا دوطـن نـاوې تـه خـپلـه شـنـه خـالـونـه وهـل
چا ويـل خيال دې چا ويل نـاوی پـه رښتيا جوړه شوه

چې خپل نصيب، ويـښ، د جانان پـه خواکې نه پرېښو ده
ځکه به ستوري ويل خوب کې پـښتـونخوا جوړه شوه

# تلوار

مازیګر دی یار دی ماته انتظار
لار اوږده ده ځما ځکه دی تلوار

دغا ټول ګلونو بیا غوټۍ سپړلی
په ډاګونو کې بلبل کوي چغار

اوس به څنګ ماته چیټۍ د مینې لیکۍ
د لونګو لو کې ګوتې پریکړی یار

کنډولې د بنګو واړه بنګې مات کړل
چې مین شو مین خپله وي خمار

د پطرو کمیس د ستوري ډېر خوښیږي
چې نغمه ئې شي په لاره کې شرنګار

## د ښکلا دری

د پښتون د کور لوګیه
شین اسمان ته پورته کیږه

وریځی راوله تیاره که   دا خپل ځان اوبه اوبه که
د رحمت شه بارانونه   په ډاګونو راوریږه
د پښتون د کور لوګیه
شین اسمان ته پورته کیږه

چې ډاګونه مو زرغون شي   ښاد آباد پکې پښتون شي
چې کري پکې ګلونه   غږ بلبل ته کړم نڅیږه
د پښتون د کور لوګیه
شین اسمان ته پورته کیږه

د پښتون ښکلي وطن   دغیرت او ننګ چمن
خالی مه شه ئې سیندونه   اوبه تل پکې بهیږه
د پښتون د کور لوګیه

شیــن اســمــان تــه پــورتــه کــیــږه

د ښـــــکــلا ډکــې دری    چې لـري درنـي حـجـري
ښایسته ئې دی دنګ غرونه    غره په سرستوری ځلیږه
د پـــښـــتـون د کـــور لــوګــیــه
شیــن اســمــان تــه پــورتــه کــیــږه

## د سرو شونډو خندا

نـن چـې بـې زړه یـمـه پـــرون ئـــې زړه زمــا وړي دي
خدای پری خبر دی چې دا بیا کومې ښــکـلا وړی دي

په یو نظر ئې کړم بې خوده په ځان پوه نه شومه
دومره پوه شوي یم د سرو شـونـډو خـــندا وړی دي

د خلکو خولو ته څوک بـرغــولـی جوړه ولــی نـشي
خـــو دا مـــنـم چــې وایـه زړه خـپـلـې وفــا وړی دي

زړه خپـله خوښـه کـړي پـه زور کـلـه د چا سـره ځـی
پـه زور ئـې وړی نـه دي ، ښــه ئـې پـه رضــا وړی دي

کـه ئـــې دا وړی زړګـــی راوور بـیا بــه زړه وکــړمه
ستوري تـــه وبه وایـــم زړه مـــې ستــا رنـــا وړی دي

## شمله

رنګ ته رنګ د مينې ورکړه تازه کړه د يارانی رنګ
وخت روان دی نه ودرېږي نوی کړه د قافيلی رنګ

پښتو مخکې کړه جانانه چې کړنلار دې پښتنه شي
خپل قامې تشخص غواړه بدلوه د زمانې رنګ

د پښتو په لار روان شه د جرګو دود را ژوندي کړه
په جرګو تل بدل کړې مونږ د هر راز کشالې رنګ

د وفا تار کې اميل کړه د پښتو رنګ رنګ ګلونه
افضل خان ته ئې ډالۍ کړه چې ئې خوښ دې د جرګې رنګ

چې د ننګ او غيرت، بت «۱» کې هسک کې ستورو ته رسيږي
پام کوه بې پته نه کړې د پګړۍ او د شملې رنګ

۱) هغه مواد چې د پګړۍ شمله پرې نيغه ودريږي

## د ځان قاتل

دروند بار د اوښانو خو وړو کې ميږي وړی نه شي
ښکار خو د زمريانو کار دي، چرګه ئې کوی نه شي

ښه ده ، ډيره ښه ده چې په سل ژبو خبرې کړي
بده خو ئې دا ده چې په خپله ګړيدی نه شي

دې د ځان قاتل دی، بل دښمن ته حاجت نلري
دا قاتل د ځان خو، د پښتو پکارېدي نه شي

ښکاري ډېر نومونو کې ئې خپل پيژند بايللي دي
څوک چې خپل پيژند نلرې بل ئې پيژندی نه شي

څو به د پيژند کړکيچ کې ګډوډ ، ليونۍ ګرزي
نشت باندې حساب دی که لدې رنځ رغيدې نه شي

ستوري دا پوښتنه خو څو ځلې له ما کړيده
دا څنګه پښتون دي، چې پښتون ځان نوموی نه شي

## د محبت قانون

د ننګ ډګر کې د قام مینې ته ځوانان ویښوي
د پطرو شور ځې چم ګاونډ کې عاشقان ویښوي

چې د بلبلو فریادونه بڼ کې پورته نه شي
د ګل د غله پسې ناري وهي، باغوان ویښوي

د باز په جاله کې ټپس او کارغان کله پرېږدي
د کارغه ښکار پسې د غره تګره بازان ویښوي

د محبت په قانون پوه ده په پښتو پښتو کړي
په غرو رغو کې پښتني غیرت ایمان ویښوي

ستوری به ولی بدرګه ورسه آسمان کې نه ځي
چې د پښتو په خوشبوي کې خپل جانانان ویښوي

## د کونړ د سیند اوبه

چې مین څوک په وطن او په خپل قام دی
هغه تل مدام لایق د احترام دی

چې د زړه په غوږ ئې هر یو پښتون واوري
په سندرو او ټپو کې پروت پیغام دي

هنرمند او شاعران دی راغونډ شوی
ټنګ ټکور به حجری ګرمې کړي ماښام دي

سل خماره ئې په هر ګوټ کې پراته دي
د کونړ د سیند اوبو ته که دې پام دي

چې نشه د خپلواکي ځوان کول ته ورکړی
ستوري خپله دی ساقي په لاس کې جام دي

## پو ښتنه او ځواب

د پــوښـــتــــنـى کـــول کــار ســـاده اســـان دي
خو پـــوښـتـــنـې تــه ځــواب ورکــول ګــران دي

ځـوابـــونــه دي ډيـــر کــم پـــوښـــتـنـى ډيـــرى
په پوښتنه ځـما ، بـوخـت ښـکـلـې جـانـان دي

د جـــانـــان نـــه ده، مـا دا پـــوښـــتـــنه کـــړي
مـــرګ اخـــر دى د ژونـــدون کـــه ژونـــد روان دي

کـــه روان وي بـــيا مـــاده ده کـــه مـــانـــا ده
کـــه دا دواړه، د دنـــيـــا د ژونـــد پـــه شـــان دې

د ځــواب لـــتـــون کـې ډيـر شـوى پـوښـتـنـې
کــبــيــر ســـتوري ځـــوابـــونـــو تـــه حـــيران دي

## مرور یار

زر ځـلـه سـتا یـم که تـه یـو ځل ویی ځما شـه
راځـه یـاره پـخـلا شــه ، تـر څـو بـه مـرورئـې

چــې ســتـا د مـیـنـي پـه تــور تــور شــوم
لـمـبـه لـمـبـه شـوم سـوی سـکـور شـوم
د رقـیـبـانـو د پـیـغـور شـوم
د رقـیـب مـخـکـې شـه راغـاړه پـه خـندا شه
راځـه یـاره پـخـلا شــه ، تـر څـو بـه مـرورئـې

دا خـومـتـل دی داسـې کـیـږي
یـاری کـې تـل بـنـګـړي مـاتـیـږي
سـتـا بـه مـړونـد ، نـه خـالـي کـیـږي
ځم بنګړي والې تـه ویـم بـیـا کالـه تـه راشـه
راځـه یـاره پـخـلا شــه ، تـر څـو بـه مـرورئـې

د شـپـې چـې بـام تـه وخـیـژمـه
آسـمـان کـې ستوري وویـنـمـه
پـوښـتـنـه سـتـا تـری تـل کـوومـه
پـټ ورتـه وایـمـه ، جـانـان تـه مـې رڼا شـه
راځـه یـاره پـخـلا شــه ، تـر څـو بـه مـرورئـې

## د ښایستونو منجارو

زړه ځما عشق کې سکه ورور د پتنګ دی
چې داو کړي سر او مال د قام په ننګ دی

څه حاجت مې د ګلونو شته باغوانه
چې جانان مې خپل ښایسته د ګل په رنګ دی

سل خیالونه به ئې زار کمه له سره
چې ئې سوچ کې د ازاد ژوندون غورځنګ دی

چې دی زړه ستوري د یار درکې خیر غواړي
منجارو د ښایستونو دي ملنګ دی

# شاړېـن

کــه چــرګ وهــی بــانــګــونــه که نور به سبا کيږي
د شپې تورې تياري پـه خـورېـدو دی رڼـا کـيـږي

زه بــه د جــانــان ديدن تــه بــيـا پـه خـــندا ورشـمه
لوی کاروان د مـيـنـــې د ژونــدون نــور روانــيــږي

رابه پسرلي شي وار به بيا د خـوشــحــالــۍ راشي
نـاخــې بـه بـلـبلـی پــه ګـلـبڼ کـې بـه ګــډ ېـږي

دا ســتـوری د اسـمــان پــه اشــارو کــې راتــه وائــې
دی شاړېڼ د پښتون غوټې سپړېدي دي غـوړېـږي

## دروغـجـن

د دروغــــجـــن ســره احـــســاس وي د کــمـــښـت
چـــې دروغ خـــپلـــه وســيلـه کـړي د درنـــښـت

دی د ژونـــد ددې قــانـــون نــــه نــاخــــبـر دی
چـــې پـــه دروغـــو ولاړ، شـی ، نـــکـړي پـايـــښـت

دا مــتـــل دی چـــې د دروغـــو مــــزل لــــنـډ دی
اولــــس کـــړي مـــونـــږ تـــه هـم دا ســـپـارښـــت

ســـتـوری وائـــي چـــې د چـــا وی دروغ عـــادت
د هـغـه بــدبــخـــت انـســان نـــه دې ســمـــښـت

## ريـحـان

خـــه حـاجـت مـې د ګـلـونـــو د ريـحـــان دی
چې جـانــان ځـما ښـــايـسـتـه د ګل پـــه شـان دی

اوسي ځـمـکـه کـې ، خـو ســـتوری د اسـمـان دی
د بــــوډا ســـره بـــوډا ځـوان ســره ځــــوان دی

## سینګار

خدای راکړي ښایسته ښکلي جانان دی
چې په لاره د پښتو باندې روان دی

پېژندلې چې عاشق د پښتو شان دی
سینګار کړي په پښتو د عشق جهان دی

چې پښتون وي بې پښتو ورته ژوند ګران دی
په پښتو ئې تل د مینې کورودان دی

لوګي کړي چې له خپلې پښتو ځان دی
هغه پاس ختلی ستوری د اسمان دی

## د مینې زور

د مینې زور دی چې پخپله پښتو سرورکوي
په ټول جهان کله د خپل وطن کمرورکوي

پښتون زړګي ئې د پښتو نه بېلېد لې نه شي
پښتو د پاره ستوری سور اور ته ټټر ورکوي

## د عشق نغمه

ډېرو راته لاپې کړلې بریت ئې تاوول
وخت چې د ریښتوني شولو ټول وتښتېدل

ما د عشق نغمه راټيټه نکړه، لا مې جيګه کړه
اورد محبت کې مې دردونه وسيزل

درد شولو سنګک «۲» د مينې اور کې چې ستي شولو
هر څوک که دردونه و، شعور ته نه راتلل

ستورو په اسمان کې مې د مينې ننداره کړله
ما چې عاشقان د مينې اورته رابلبل

۲) سنګک: کلک، سوړ

## وفا

يتار د مينې غړوم، نوی دنيا د پاره
قانون د مينې جوړومه د سبا له پاره

احساس د مينې مې د خپلې پښتو ليرې نه ځي

له پښتو سر قربانوم د پښتونخوا له پاره

چې ورایز د نوې ژوند پکې سندري وایي
ملا مې تړلې ده د ژوند د خوشحالتیا له پاره

د غیرت زور مې بوڼاگانو ته ځوانۍ وربخښي
د ځواني مینې او وطن د پرمختیا له پاره

راشه چې ستوري سره وکړو مرکه د مینې
د مینې ژوند خو خدای جوړ کړي د وفا له پاره

یادونه: ورایز جنج، ورا

## زړښت

ځما هلته ژوندون گران دی، چې ښایست او ښکلا نشته
چې ښایست رانه وانخلې، په زړښت مې پروا نشته

د زړښت دا بد عادت دی، چې ښایسته بدرنگوي
د بدرنگو په محفل کې ، زړه راښکوونکې مسکا نشته

ګرموي مه همځولو ، چې مین یمه په ښکلو
محبت مینه د ښکلو سره ، ګوره د چا نشته

په ځوانۍ کې شوه استاده د ښکلا په پوهنتون کې
پدې هر څوک ښه خبر دی، حاجت نور دوینا نشته

نیمه شپه مالت ته راغله ځه چې مخې ته ورزو
هسک کې ستورې راختلې ، نو ډیوې ته اړتیا نشته

## سندریز ماښام

خیال کې خواله درغلم نه وریبار
ستا د زلفو خوشبوۍ جوړ کړ بهار

ما د ژوند هره بیلګه تپه تپه کړه
سندریز ماښام مې تا ته کړو تیار

په نغمو او ټنګ ټکور مې ګرمه شپه کړه

وار هـم راغـي پـکـې سـتا د يـکـه زار

په تپو کې ستا تر غوږ مې تيرولـه
چې لـه پـت او لـه پښتو بـه کـړم ځـان زار

چې ئـې زړه کې وي د قـام او وطـن مينـه
د هـغـه سـره بـه تـل ځـمـه پـه لار

نـظـر ئـې د ظـلـم زور مـې نـه خـوښـيـږي
کـه پـه سـر کې وي د يـار کـه د اغـيـار

نيت مې کړي په خندا ئـې تيرومـه
چې عمری راسره مل شو غم د يـار

کـه بلبلی نـخـا کـانـدې ورتـه غـږ کـړي
ستوري ډير وخت پس راو اخيسته سيتار

## سلما

دوړ کـتـوب دی راتـه يـاد شولو خوارږه وختونه
د واوا نوم کي دی ټومبلې و د ښايست رنګونه

تا به دودو سکلو لولو به شوي د مور غيږه کې
مور دې په سر سترګو منلې و هر راز نازونه

ته په خودې کې وي بې خوده خپله خوښه دی کړه
واوا شيان بـه دی د ځانـه تاوول پـنـډونه

ستا ژبه خپله وه د غتې په ژبه نه ګړېدی
د غتې د ژبې لنډول به دې اړوده لفظونه

تا به پتوال ځيني پتو، پوهيال نه پوه جوړ کړ
خو نور چې غتې څه کول، تا به کړه هغه کارونه

چې پښتني سوچ، سلما [1] ستا دماغ کې وده وکړه
ستوري په سر باندې دی وشيندل دلی ګلونه

---

۱ ) سلما څما لمسی ده چې ۲۲/ ۱/ ۲۰۰ نېټه پيدا شويده. پورتنی شعر د هغې د خاپوړوو د پړاو په کتنی ولاړ دی. سلما لوړ ژبني استعداد لري او اوس په خبره پوخيږي بل هم پخپله خبره پوهولی شي.
پوهيال او پتوال چې په پورتني شعر کې نومونه راغلي دی هم ځما لمسيان دي پوهيال په ۱۱/ ۳/ ۱۹۹۸ع او پتوال په ۲۲/ ۸/ ۱۹۹۹ع کال پيدا شويدي.

## د مينې قانون

چې جانان لوی شي پوه د مينې په قانون شي
زړه ئې پښتون، احساس پښتون، سوچ ئې پښتون شي

بيا به په عشق کې پسرلي د پښتونوالی راشي
ورځ به په لمر، شپه به په ستورو روڼ ژوندون شي

## غلچکی

دا جنی چې کوی تا سره خندا

غلچکي ده چې د غلو نه کوي غلا

چې د غل د محبت نه ئې غلا وکړه
ستوري خو مره ورکوي ورته سزا

## د غیرت امتحان

توره او قلم راته میراث پاتي له پلار دی
زه قلم نه توره جوړومه لیک مې کار دی

ول به د قلم د پټکي ډک زه له غیرته کړم
بیا مې د غیرت د امتحان راغلي وار دی

ژبه به د قام او د اولس خپله درنه کړمه
ننګ که څوک کوي نو په پښتو باندې پکار دی

لیک او لوست پخپله ژبه لار د پرمختیا ده
هر قام چې اوچت ختلي، تللي پدې لار دی

نه چې کړي پښتو په پښتو باندې پښتون نه دی
ستوري دا پښتو خو د پښتون ډول سینګار دی

## د عشق مضمون

راځي ملګرو چې د مینې ډک ژوندون جوړ کړو
دا وران ویجاړ او کنډواله کور د پښتون جوړ کړو

چې د خپل کور واک کړو راخپل او بیا واکمن شو د کور
د پرمخ تګ او سوکالۍ په لوري یون وکړو

چې د پښتو د پسرلي ګلان غوټۍ ونیسي
په یو ټغر د ټولیدو قامي تړون جوړ کړو

چې غم غمګین او خوشحالۍ پکې شاډوله کوي
د قام اولس په ژوند کې داسې اوښتون جوړ کړو

چې عاشقان پکې راغوند وي ټول د عشق ښوونځي کې
د سوچ او فکر ازادۍ د عشق مضمون جوړ کړو

چې د نظر د ازادۍ ستورى ځلیږي پکې

په پابندۍ وی پابندي داسې قانون جوړکړو

## سندره

ډېره راته ګرانه ده چې ښکلې بې مثاله ده
بیا چا لمسولی د ښایست ملکه ماله ده

ما ته ئې ویلي چې کتاب دی ځیرومه
تا د محبت سندره بیا لیکلی چاله ده

مینه دي منمه د وطن او د پښتو سره
بله معشوقه کله ځما د ښایست سیاله ده

ما ورته ورغبرګه کړه چې ته مې د سوچ ناوی ئې
کله مې سندره بیله شوی ستا د خیاله ده

ستوری « سندریز پیغام » کې ښه په ګوته کړېده
هر یوه سندره ئې لیکلې بس دا تاله ده

## ولولی

تیـــری چـــې د ژمـــی اوږدی شـــپې شـــولـــې
بـــیـا پـــســرلـــي راغـــی ونـــی شـنـې شـولـــې

رنـــګ مـــې ستـا د شـونـډو ګل کـــې ولـــید
مـــســـتـې مـــې د مـیـنـې ولـولـي شـولـــې

زه د ګــــل د مــــخ پـــه تـــمـاشــه وومــــه
ســتـرګـې د بـلـبـلـو راپـــســي شــــولـــې

ســـوچ مـــې د بـلـبـلـو ســـره ونـــښـــل
جـــوړې د ګــــډا مـــسـابـــقـــې شـــولـــې

ســتـوری مې د بـخــت اسـمـان کـې وځـلـــيـد
بـیـا پـه رقـیـبـانــو زلـــزلـــې شــــولـــې

# خاطر

څله مې پوښتی چې مې څه څښلي دی
ما د کونړ د سیند اوبه څښلي دي

د ازادۍ پیکې نشه پرته ده
ما تل په لپوله ویاله څښلي دي

چې د وفا او مینې دود پالمه
د پښتنې مورمې شده څښلي دي

د خوږو خوند باندې هغه پوهیږي
چې ئې ټول عمر کې ترخه څښلي دي

اوس مې لږ خواته رانږدې که کنه
ستا په خاطر خو ما هر څه څښلي دي

ساقي چې ستا په فرمایش جام راووړ
ستوري په سترګو او لیمه څښلي دي

## د پوهنې دېره

د پښتونخوا د پوهنې دېره په دې فخر او وياړ کوي چې د خپلو کوښښونو په ترڅ کې ئې په ډېر لږ وخت کې د پښتو ژبې د شعر او نثر يو شمير کتابونه چاپ او لوستونکو ته وړاني کړل، برسيه پردې د پوهنې دېرې تل هڅه کړې چې د پښتو موسيقۍ ماښامي او پروګرامونه د نامتو سندر غاړو په خوږو اوازونو جوړ او د موسيقۍ مينه والو ته وړاندې کړي، غواړو چې بل ځل بيا د خپل زيار انځور نه ستاسې له نظره تيره کړو.

١. ګلپاڼه (شعرې ټولګه ) شاعر: مبارز ځاپې
٢. د قلم توره (شعرې ټولګه ) شاعر: ډاکتر کبير ستورې
٣. ژوندې وزر (شعرې ټولګه ) شاعر: ډاکتر ديدار يوسفزې
۴. مرغزار (شعرې ټولګه ) شاعر: محمد حنيف قيس
۵. لعلونه (د سوات او ملاکنډ د شاعراونو تذکره) ټولونکي: رحيم سيد او اختر ملک
۶. ډالۍ (دحمد بابا او علی خان بابا منتخب کلامونه) ټولونکی: لايق زاده لايق
٧. ماته ائينه (افسانې ليکوال: لايق زاده لايق
٨. يادونه (شعرې ټولګه ) شاعر: ابراهيم بيداروال
٩. ژوند او جانان (شعرې ټولګه ) شاعر: سعيد الله خادم
١٠. راښکلی غشی (شعرې ټولګه ) شاعر: ډاکتر ديدار يوسفزې
١١. د هوښيار تيا تله (ساپوهنه ) ليکوال: ډاکتر کبير ستورې
١٢. ژبسا پوهنه (سا پوهنه) ليکوال ډاکتر کبيرستورې
١٣. زر پاڼه (شعرې ټولګه ) شاعر: مبارز ځاپې
١۴. زرغون زيرې (د ما شومانو نظمونه ) شاعر: ډاکتر ديدار يوسفزې
١۵ نسکورې لپې (د هائيکو مجموعه ) شاعر: ډاکتر ديدار يوسفزې
١۶. پرخه په پرخه (شعرې ټولګه ) شاعر: حنيف خليل
١٧. مړاوې ګلونه (شعرې ټولګه ) شاعر: سليم خټک مرحوم
١٨. د پښتون / افغان قامی جرګه (مقالې اووينا ګانې)
١٩. خړ ماښام (شعرې ټولګه ) شاعر: عبدالله وحيد

۲۰ .چونګ ملغلري ( د مختلفو شاعرانو منتخب شعرونه ) ټولوونکې حميد اقبال ګلرنګزی
۲۱ . مشکنی (شعری ټولګه ) شاعر: لايق زاده لايق
۲۲ . پونه (شعری ټولګه ) شاعر: اقبال حيران
۲۳ . پړونی ( دريديو ځخه خپری شوی ډرامی ) ليکوال اقبال حيران
۲۴. لمبې (شعری ټولګه ) شاعر:
۲۵ . تاله ميدان (شعری ټولګه ) شاعر: ډاکتر ديار يوسفزی
۲۶ . زغو کې پسرلی (شعری ټولګه ) شاعر: طماس افريدی
چاپ ته تيار کتابونه
۲۷ . د هوښيارتيا بې پلوه تله ( ساپوهنه ) چاپ ته تيار په انګليسی، جرمنی او پښتو ژبو ليکوال: ډاکتر کبير ستوری
۲۸ . د هوښيارتيا نا پيلی بې پلوه تله ( ساپوهنه ) په انګليسی، جرمنی او پښتو ژبو ليکوال: ډاکتر کبير ستوری
۲۹ . د افغانستان تاريخی حوادث ليکوال: عطا محمد شيرزی
۳۰ . خوب مانا ( ساپوهنه ) ليکوال ډاکتر کبير ستوری
د پوهنې دېره هڅه کوی چې د ټول پښتنو ليکوالانو ، نثری ، شعری ، تحقيقې او علمي ليکنې د نورو زياتوونو سره خپلو مينه والو ته د لوستولو جوګه کړی زمونږ دا ادبی کلتوری هلی ځلی به په راتلونکي وخت کې هم دوام لری او په دې هيله يو چې پښتانه ليکوالان به د خپلی ژبې « پښتو » له پاره خپل استعدادونه او صلاحيتونه په کار راولی، تر څو دغه تنګياله ژبه د سيالو سره سياله شی

په درنښت
عبدالصير بيدار
د پښتونخوا د پوهنې دېرې سيکرتر

# خوښنه او مننه

هر ځل چې زه یو کتاب لیکم نو ګڼ شمېر ملګري راسره د مرستې پېرزوینه کوي. دا پېرزوینې ډېرې درنې دي چې زه ئې په خوښنه او مننه حق پوره کولی نه شم. خو په دې توګه سې یاد د ځان سره تازه ساتم.

په دی لړ کې زه تر ټولو د مخه د ښاغلي نسیم خان ستوری څخه خوښنه کوم چې د « سندریز پیغام » شعرونه ئې په کمپوټر په مینه لیکلي او هم د سنګر ستوری نه مننه کوم چې ځینو شعرونو په لیکلو کې مرسته کړی ده.

همدغسې د پښتو ژبې د پیاوړو لیکوالانو او شاعرانو ښاغلی مبارز خاپی، ښاغلې عریز سرشار او ښاغلي عبدانصیر نصیر څخه ډیره ډیره مننه چې د « سندریز پیغام » د شعرونو لیک دود ئې کتلی او دا ډاد ئې راکړی چې په مانا ئې خلک پوهیږي.

تر ټولو زیاته مننه د پیاوړی شاعر او لیکوال د پېښور د پوهنتون استاد او د راډیو او تلویژون نومیالي ویاند ښاغلي فروفیسر اباسین یوسفزی، د کابل د راډیو تلویژون پخواني ویاند ښاغلي همراز ننګرهاری او نامتو شاعر د راډیو او تلویژون ویاند ښاغلي هدایت الله ګل څخه کوم چې د ښکلو پروګرامونو کوربانه او ویناوال و.

همدغسي د پښتونخوا د پوهنې د دېرې د مشر ښاغلي لايق زاده لايق، ستر سيکرټر ښاغلي عبدالبصر بيدار او سباوون د ثقافتي مرکز د مشر ښاغلي ګلاب يوسفزي د زيار څخه چې « د سندريز پيغام » د شعرري ټولګی د سبالښت چارې پغاړه اخستي او د پښتو ژبې نامتو هنرمندانو ته د رسولو او د هغوي سره په ګډه د موسيقي پروګرامونو د جوړولو په لاره کې زيار ويستلي دی ډيره ډيره مننه.

ددی هنرمندانو د نومونو ياد ضروري ګڼم چې « د سندريز پيغام » د کتاب ځيني شعرونه ئې په خپلو خوږو اوازونو کې د چاپ د مخه د مينه والو غوږونو ته رسولي دی.

پدې نښتون کې زه د ښاغلي ماسټر علی حيدر، استاد ګلزار عالم، پيغلي نازيه اقبال او ښاغلو رضوان منور، سياګل مينا ، شاه ځوان منور، ګل جان صادق، زاهدالله افريدی،استاد نواب، نورارحمن، رحيم ګل، غازی ا و فياض خان همدارنګه د ماسټر علی حيدر، استاد نذير ګل ، استاد مينا ګل، فرخ ريب نوشهروی، استاد صنم چې د موسيقی ټرونونه ئې کړی د پيرزوينو څخه ډيره ډيره مننه کوم.

په پای کې د ښاغليي عارف غرګی څخه ددې کتاب « سندريز پيغام » د چاپ لګښت ئې په غاړه اخيستې او د دانش کتابتون د مشر ښاغلي اسدالله ساپی د زيار څخه ډيره ډيره مننه

په درنښت

ډوکتور کبير ستوری

کبیر ستوری د ساینس پوهنو دکتور (Dr. rer. Nat) دپلوم ساپوه (Diplom Psychology) په هر پښتون په تبر میرداد خیل چې د پښتنو د یوسفزو د پرګنې پورې اړه لري. ستوری دلعل محمد خان زوی او د برې پښتونخوا د کونړ د تنر په کلي کې په ۱۷/۱/۱۳۲۱ هل کال (۰۶/۰۴/۱۹۴۲ ع) زیږېدلی دی.

ده خپله لومړنۍ زده کړه د خاص کونړ په لومړني ښوونځي او په کابل کې د رحمان بابا په لیسه کې او خپله لوړه زده کړه د جرمني د فرانکفورت، کولن او د ماربورګ په پوهنتونونو کې د ساپوهنې (Psychology) په څانګه کې، چې فلسفه (Philosophy) سیاسي پوهنه (Pol.Science) او ټولنپوهنه (Socialogy) ورسره مل وه، سرته رسولې ده.

ستوری د نړۍ د ساپوهانو په ډله کې ولاړ دی او د ۱۹۷۵ ع کال راهیسې د کړنې د ساپوهنې د نړیوالې ټولنې (International Association of Applied Psychology) غړی دی. ستوری د پښتون سوشل ډیموکراتیک پارتۍ (PSDP) مشر او د دې پارتۍ د بنسټ ایښودونکو مخکښانو څخه دی.

او د شاعرۍ په نړۍ کې تر ټولو زیات د پښتو د ادب د پلار اجمل خټک نه یې الهام اخیستلی دی. د پښتنو د یووالي، خپلواکۍ او سوکالۍ د پاره د ده د باچا خان نظریو ژوند ورېښلی دی.